افغانستان کې همدا عدد هم یو ټیټ عدد دی. د جګړې په کلونو کې په پاکستان کې د افغان مهاجرو په ټولنه کې د نفوسو کلنۍ وده (۳) اټکل شوې وه[۹] که په دوه زرم کال کې د افغانستان نفوس دیرش میلیونه ومنو؛ نو په افغانستان کې د بېلو بېلو قومونو په بنسټ د نفوسو شمار، د قومونو فیصدي او ویش د افغانستان لپاره د واك فونډیشن Wak Foundation For Afghanistan "WFA" د شپږ کلنۍ سروې او څېړنې (۹۶-۱۹۹۱) له مخې په لاندې ډول دي:

الف. په ټول هېواد کې د قومونو فیصدي[۱۰]

| شمیر | قومي ګروپونه | فیصدي |
|---|---|---|
| ۱ | پښتانه | ۶۲،۷۳ |
| ۲ | تاجك | ۱۲،۳۸ |
| ۳ | هزاره | ۹ |
| ۴ | ازبك | ۶،۱ |
| ۵ | ترکمن | ۲،۶۹ |
| ۶ | ایماق | ۲،۶۸ |
| ټول | | ۹۵،۵۸ |
| نور کوچني اقلیتونه | | ۴،۴۲ |
| ټول ټال | | ۱۰۰ |

ب. په زونونو کې د قومونو ویش[۱۱]:

۱. شمال + لویدیز زون *

| شمیر | قومي ګروپونه | د زون د نفوسو په سلو کې | د هېواد د ټول نفوس په سلو کې | شمار (نفوس) |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | پښتانه | ۳۹،۴۷ | ۱۳،۲۹ | ۳،۹۸۷،۰۰۰ |
| ۲ | تاجك | ۲۰.۹ | ۷.۰۴ | ۲،۱۱۲،۹۰۰ |
| ۳ | ازبك | ۱۷،۵ | ۵،۸۹ | ۱،۷۶۷،۰۰۰ |
| ۴ | ترکمن | ۷،۶۸ | ۲،۵۸ | ۷۷۴،۰۰۰ |
| ۵ | هزاره | ۵،۹۳ | ۱،۹۹ | ۵۹۷،۰۰۰ |
| ۶ | ایماق | ۵،۷۱ | ۱،۹۲ | ۵۷۶،۰۰۰ |
| نور کوچني اقلیتونه | | ۲،۸۲ | ۰،۹۵ | ۲۸۵.۰۰۰ |
| ټول ټال | | | ۳۳،۶۷ | ۱۰،۰۹۸،۰۰۰ |

* شمال + لویدیز زون: بدخشان، تخار، کندز، بغلان، سمنګان، بلخ، جوزجان، فاریاب، بادغیس، هرات او فراه.

۲- مرکزي زون ( بامیان، غور، ارزګان):

| شمیر | قومي ګروپونه | د زون د نفوسو په سلو کې | د هېواد د ټول نفوس په سلو کې | شمار ( نفوس) |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | هزاره | ۵۰ | ۳,۱۷ | ۹۵۱.۰۰۰ |
| ۲ | پښتانه | ۳۴,۶۱ | ۲,۲ | ۶۶۰.۰۰۰ |
| ۳ | ایماق | ۱۱,۹۱ | ۰,۷۶ | ۲۲۸,۰۰۰ |
| ۴ | تاجك | ۲,۱۱ | ۰,۱۳ | ۳۹,۰۰۰ |
| ۵ | نور کوچني اقلیتونه | ۱,۳۹ | ۰,۰۹ | ۲۷,۰۰۰ |
| ټول ټال | | | ۶,۳۵ | ۱.۹۰۵,۰۰۰ |

۳- جنوب + ختیز زون ( کونړ، لغمان، ننګرهار، پکتیا، پکتیکا، کاپیسا، پروان، کابل، وردګ، لوګر، غزنی، زابل، کندهاراو نیمروز):

| شمیر | قومي ګروپونه | د زون د نفوسو په سلو کې | د هېواد د ټول نفوس په سلو کې | شمار ( نفوس) |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | پښتانه | ۷۶,۴۲ | ۳۷,۳ | ۱۱,۱۹۰,۰۰۰ |
| ۲ | تاجك | ۱۰,۶۷ | ۵,۲۱ | ۱,۵۶۳.۰۰۰ |
| ۳ | هزاره | ۷,۸۴ | ۳,۸۳ | ۱,۱۴۹.۰۰۰ |
| ۴ | ازبك | ۰,۴۳ | ۰,۲۱ | ۶۳,۰۰۰ |
| ۵ | ترکمن | ۰,۲۱ | ۰,۱ | ۳۰,۰۰۰ |
| ۶ | نور کوچني اقلیتونه | ۴,۴۲ | ۲,۱۶ | ۶۴۸,۰۰۰ |
| ټول | | | ۴۸,۸۳ | ۱۴,۶۴۳.۰۰۰ |

| | | |
|---|---|---|
| ټول ټال (۱+۲+۳) | ۸۸,۸۲ | ۲۶,۶۴۶,۰۰۰ |

## ۴ . کوچیان Nomads [۱۲] :

کوچیان نن سبا په خپله پرونۍ بڼه او شمار کې نه دي پاتې شوي. خو، د ځای په ځای شوي، نیم ځای په ځای شوي او یا څه نا څه کوچي په هره بڼه کې چې وي؛ د نور افغان نفوس په ځیر زیات شوي دي.

- پښتانه کوچیان د هېواد د ټولو کوچیانو% ۸۹؛ د هېواد
د ټولو نفوس ۹,۹۵ ........................................ ۲,۹۸۵,۰۰۰
- نور کوچیان د هېواد د ټولو کوچیانو %۱۱؛ د هېواد
- د ټول نفوس% ۱,۲۳ ........................................ ۳۶۹,۰۰۰

ټول کوچیان د هېواد د ټول نفوس۱۱,۱۸ ........................................ ۳,۳۵۴,۰۰۰

د هېواد ټول نفوس........................................ ۳۰,۰۰۰,۰۰۰

د هېواد په کچ د بېلو بېلو قومي ګروپونو شمار:

| شمېر | قومي ګروپونه | شمار |
|---|---|---|
| ۱ | د افغانستان ټول پښتانه | ۱۸,۸۲۲,۰۰۰ |
| ۲ | تاجك | ۳,۷۱۴,۰۰۰ |
| ۳ | هزاره | ۲,۶۹۷,۰۰۰ |
| ۴ | ازبك | ۱,۸۳۰,۰۰۰ |
| ۵ | ترکمن | ۸۰۷,۰۰۰ |
| ۶ | ایماق | ۸۰۴,۰۰۰ |
| ۷ | نور کوچني اقلیتونه | ۱,۳۲۶,۰۰۰ |
| ټول | | ۳۰,۰۰۰,۰۰۰ |

**یادونه**: د نورو کوچنیو قومي اقلیتونو په پورتني شمار کې ۳۰۰,۰۰۰ افغان بلوچ هم ګډ دي.

په افغانستان کې د قومونو ویش ښیي چې شمالي افغانستان د زیات شمیر افغان قومونو د تراکم سیمه ده. په شمال ختیزه حوزه کې د بدخشان نه نیولې په لویدیز کې تر فراه پورې، تاجك د نفوسو په سلو کې ۲۱، ازبك ۱۷,۵، ترکمن ۷,۶، هزاره ګان ۶ او ایماق په سلو کې ۵,۷ نفوس جوړوي. نو، پښتانه په سلو کې ددې زون د نفوسو د ۳۹,۴۷ په توګه اکثریت قومي ګروپ جوړ وي. عرب، بلوچ، مغل او نورې کوچنۍ قومي ډلې ددې زون کوچني اقلیتونه دي.

په دې زون کې د تاجکو او ازبکو فیصدي سره نژدې دي: د افغانستان د ټولو تاجکو په سلو کې ۷ او د ازبکو په سلو کې ۶ نفوس په دې زون کې آباد دي. په بله ژبه، په سلو کې د افغانستان دټولو تاجکو ۷ او نژدې ټول ازبك پدې زون کې اوسیږي. په سلو کې د ټولو پښتنو ۱۳، د هېواد د ټولو هزاره ګانو او ایماقو په سلو کې دوه دوه په دې زون کې میشت دي. یوازې په شمال + لویدیز زون کې آباد پښتانه د هېواد د ټولو تاجکو او ددې زون میشت تاجك د هېواد د ټولو ازبکو سره برابر دي.

جنوب + ختیز زون چې پښتنو پکې خپل ژبني هویت ساتلی؛ د پښتنو د مطلق اکثریت سیمه ده. شاړي، نورستاني، عرب او ګوجر ددې سیمې غټ کوچني اقلیتونه دي. په همدې توګه بلوچ د یوه کوچني اقلیت په توګه په جنوب کې آباد دي.

## د اکثریت او غټو قومي اقلیتونو ویش:

**پښتانه** : د هېواد د ټولو ۶۲,۷۳ پښتنو په سلو کې دوه د هېواد په مرکزي، ۱۳ د هېواد په شمال + لویدیز، ۳۷ په جنوب + ختیز او په سلو کې پاتې ۱۰ د کوچیانو په توګه آباد دي.

**تاجک**: په سلو کې دهیواد د ټولو ۱۲ تاجکو ۷ د هندوکش په شمال کې له بدخشان نه نیولې تر فراه پورې او په سلو کې پاتې ۵ د هندوکش په جنوب کې ډیر په پروان، کاپیسا او

کابل کې آباد دي

**هزاره**: بامیان په افغانستان کې د هزاره ګانو اصلي سیمه ده. خو، د یادونې وړده چې په سلو کې د افغانستان د ټولو ۹ هزاره ګانو یوازې ۳ د بامیانو په ګډون په مرکزي افغانستان، په سلو کې ۲ په شمال+ لویدیز زون او په سلو کې پاتې ۴ هزاره ګان دهیواد جنوب + ختیز زون کې آباد دي.

د افغانستان د ټولو ازبکو، ترکمنو او ایماقو د اوسیدو اصلي سیمه شمال+ لویدیځ زون دی.

## ۲. پاکستان:

د پاکستان د ۱۹۹۷ کال د سرشمیرنې له مخې ددې هېواد ټول نفوس ۱۳۵,۲۸۰,۰۰۰ ښودل شوی دی [۱۳]:

| شمیر | قومي- ژبني ګروپونه | نفوس |
|---|---|---|
| ۱ | شمال لویدیزه سرحدي صوبه | ۲۰,۳۴۳,۰۰۰ |
| ۲ | پنجاب | ۷۳,۱۶۰,۰۰۰ |
| ۳ | سند | ۲۹,۵۶۸,۰۰۰ |
| ۴ | بلوچستان | ۶,۷۳۸,۰۰۰ |
| ۵ | فاټا FATA او نور | ۵,۴۷۱,۰۰۰ |
| ټول | | ۱۳۵,۲۸۰,۰۰۰ |

ددې هېواد د ۱۹۸۱ کال دسر شمیرنې له مخې د بېلو بېلو قومي- ژبنیو ګروپونو فیصدۍ په لاندې ډول دي [۱۴]:

| شمیر | قومي- ژبني ګروپونه | فیصدي |
|---|---|---|
| ۱ | پنجابیان | ۴۸,۱۷ |
| ۲ | پښتانه | ۱۳,۱۴ |
| ۳ | سندیان | ۱۱,۷۷ |
| ۴ | سرائیکیان | ۹,۸۳ |
| ۵ | مهاجر | ۷,۶ |
| ۶ | بلوچ | ۴,۲۱ |
| نور کوچني قومي- ژبني ګروپونه | | ۵,۲۴ |

**یادونه**: پنجابیان کوم قومي ګروپ نه، بلکې د یوزیات شمیر قومي- ژبنیو ګروپونو مجموعه ده.

مهاجر: هغه هندي مسلمانان دي چې په ۱۹۴۷ کال کې د هند د ویش په خت کې پاکستان ته راغلل.

مهاجر پخپله د بیلو بیلو قومي- ژبنیو ګروپونو مجموعه ده؛ نه یوځانګړی قومي- ژبنی ګروپ.

د یادونې وړده چې په پاکستان کې هم د قومونو فیصدي یوه نانډریزه مسئله ده. ټولو ته د منلو وړ فیصدۍ په لاس کې نشته. پښتانه، بلوچ او سرائیکي قومي – ژبني ګروپونه د پاکستان په ټول نفوس کې د خپلو فیصدیو سره موافق ندي. دمثال په توګه په بلوچستان کې پښتانه او بلوچ خپل دقیق شمار نلري. په سند کې بلوچ، پښتانه او سندیان

یو په بل کې دل شویدي. په شمال لویدیزه سرحدي صوبه North West Frontier Province (NWFP) کې غیر پښتو ژبي پښتانه له پښتو ژبو پښتنو نه کم شوي. په پنجاب کې په خته یو زیات شمیر پښتانه په سرائیکي ژبني ګروپ کې ورك او شمارل شویدي. په همدې ډول. لکه څنګه چې د پښتنو په ګډون یو زیات شمیر غټ او واړه قومي ګروپونه په پنجابي قومي- ژبني ګروپ کې شمارل شوي؛ په کشمیر کې هم پښتانه په کلتوري بنسټ ورك شویدي.

مونږ په پاکستان کې د قومي ګروپونو په هکله د قیقه او پراخه څیړنه نلرو. خو، داچې په افغانستان کې د قومونو په بنسټ ولاړ فدرالیزم سیمه ییزې قومي لاس اچونې کولای شي؛ نو په لنډ ډول مو د پاکستان قومي- ژبني ګروپونه له نظره تیر کړي دي.

## لومړی، پښتانه

**الف، پښتانه په شمال لویدیزه سرحدي صوبه کې:** د ۱۹۸۱ کال د سر شمیرنې له مخې یوازې پښتو ژبو پښتنو ددې صوبې په سلو کې ۶۸,۳ نفوس جوړاوه [۱۵]. نو د پاکستان د۱۹۹۷ کال د نفوسو له مخې ددې صوبې پښتو ژبي پښتانه په لاندې ډول ګڼلای شو:

۲۰,۳۴۳,۰۰۰ × ۶۸,۳% = ۱۳,۸۹۴,۲۶۹

خو، د دې صوبې د ډیره اسماعیل خان D. I. Khan د ولسوالی (ضلعی) او د هزاره ډویژن Division (لویه ولسوالي) د ایبټ آباد او مانسهرې د ولسوالیو غیر پښتو ژبی پښتانه هم ددې صوبې د پاملرنې وړ نفوس جوړ وي. خو داچې اوس د ډیره اسماعیل خان د غیر پښتو ژبو پښتنو په هکله څه ناخه دقیق معلومات په لاس کې نلرو؛ نو پدې څیړنه کې مو دا پښتانه په نظر کې نیولي ندي. د ۱۹۸۱ کال د سرشمیرنې له مخې د مانسهرې او ایبټ آباد ولسوالیو، چې زیات په ترین، ساپیو، مشوانیو، زاخیلو او نورو پښتنوقومي ګروپونو آبادې دي؛ په ترتیب سره ددې صوبې په سلو کې ۹,۶۴ او ۱۰,۵۷ نفوس جوړاوه [۱۶]. پښتانه ددې دواړو ولسوالیو په شلو کې لږ تر لږه ۸۰ نفوس جوړوي [۱۷]. نو، پدې صوبه کې یوازې د همدې دوو ولسوالیو غیر پښتو ژبې پښتانه د ۱۹۸۱ کال د فیصدی له مخې د صوبې په کچ د ۱۹۹۷ کال په نفوس کې لاندې عدد خپلولې شي:

مانسهره ........................ ۲۰,۳۴۳,۰۰۰ x ۹,۶۴ % = ۱,۹۶۱,۰۶۵

ایبټ آباد ........................ ۲۰,۳۴۳,۰۰۰ x ۱۰,۵۷ % = ۲,۱۵۰,۲۵۵

ټول نفوس........................ ۴,۱۱۱,۳۲۰

غیر پښتو ژبي پښتانه ........................ ۴,۱۱۱,۳۲۰ x ۸۰ % = ۳,۲۸۹,۰۵۶

## ب، پښتانه په پنجاب کې:

د پاکستان د ۱۹۸۱ کال د سر شمیرنې له مخې د پنجاب د اټك او میانوالی ولسوالیو، چې په اویایمه لسیزه کې له شمال لویدیزې سرحدي صوبې نه بېلې او په پنجاب

پوری وترل شوې او زیاتې په عیسی خیلو، نیازیو او ختکو پښتني قومونو آبادې دي. په ترتیب سره د پنجاب د ټول نفوس ۲,۴۲ او ۲,۹۱ نفوس جوړاوه [۱۸]. ددې دوو ولسوالیو پښتون نفوس که په ترتیب سره د پنجاب د ټول نفوس ۲ او ۲,۵ هم ونیسو [۱۹] نو، ددې دوو ولسوالیو غیر پښتو ژبې پښتانه د پاکستان د ۱۹۹۷ کال د سر شمیرنې له مخې دپنجاب په ټول نفوس کې لاندې شمیر جوړ ولای شي:

اټك .................... ۱,۴۶۳,۲۰۰ = ۲% × ۷۳,۱۶۰,۰۰۰

میانوالي.................... ۱,۸۲۹,۰۰۰ = ۲,۵% × ۷۳,۱۶۰,۰۰۰

ټول.................... ۳,۲۹۲,۲۰۰

په دې سربیره، د پاکستان د ۱۹۸۱ کال سرشمیرنې په ټول پنجاب کې په سلو کې ۰,۷۶ پښتوژبې پښتانه ښودلي دي[۲۰]:

۵۵۶,۰۱۶ = ۰,۷۶ x ۷۳,۱۶۰,۰۰۰

د دقیقو ارقامو د نه درلودلو له کبله مو د پنجاب د قصور Kasur د ولسوالۍ غیر پښتو ژبې پښتانه، د ګوجرانوالې او ګوجرات غیر پښتو ژبي پښتانه، په سرائیکي قومي- ژبني ګروپ کې د ملتان، ډیره غازي خان، فیصل آباد او بهاولپور د ولسوالیو په ختم لودي، نیازي، ختك، عیسی‌خیل اونور دل شوي سرائیکي ژبي پښتانه پدې څیړنه کې په نظر کې ندي نیولي. خو، بیاهم د پنجاب پښتو ژبي او غیر پښتو ژبي پښتانه لږ تر لږه ۳,۸۴۸,۲۱۶ کیږي.

## ج، پښتانه په بلوچستان کې:

د یادونې وړ ده چې، د بلوچستان د ټولې ۳۴۷,۱۹۰ مربع کیلو متره [۲۱] ځمکې په زیات پراخوالي کې بلوچ ( بلوچ + براهوي) او په پاتې لږ پراخوالي کې پښتانه آباد دي. خو د وروستي پراخوالي د نفوسو له تراکم نه د لومړني پراخوالي د نفوسو لږ تراکم په بلوچستان کې د بلوچو او پښتنو په شمیر کې یو معکوس تناسب منځ ته راوستی دی.

د یادونې بل مهم ټکی دادی چې، د افغانستان، ایران او پاکستان د درې واړو هیوادونو په بلوچ میشته سیمو کې د نفوسو تراکم ډیر ټیټ دی. د مثال په توګه د افغانستان په اصلي بلوچ میشته سیمه نیمروز کې د نفوسو تراکم په ۱۹۹۰ کال کې درې [۲۲] او په پاکستاني بلوچستان کې په ۱۹۸۱کې ۱۲ وو. خو، په سند کې ۱۳۵، په پنجاب کې ۲۳۰ او NWFP کې ۱۴۸ وو[۲۳]. له بلې خوا د پاکستان د نوموړې سر شمیرنې له مخې د بلوچستان په پښتنو میشتو سیمو کې د نفوسو تراکم په بلوچ میشته سیمو کې د نفوسو له تراکم نه زیات ښودل شوی دی. د مثال په ډول د بلوچستان په پښتنه میشته سیمه پشین کې د نفوسو تراکم په ۱۹۸۱ کال کې ۳۴,۱ وو. خو، په بلوچ میشته سیمه پنجګور Panjgur کې دا تراکم ۹,۵ و؛ په پښتون میشته سیمه ژوب کې ۱۳,۳، خو، په بلوچ میشته سیمه خضدار کې ۶ و [۲۴]. په دې برسیره، کویټه د بلوچستان د مرکز او ډیر نفوسه ښار په توګه چې د ۱۹۸۱ کال د سرشمیرنې له مخې یې د نفوسو تراکم ۱۸۴ و او د بلوچستان ۸,۸%

نفوس یې درلود ، زیاته زیاته یوه پښتنه میشته سیمه ده. په کویټه برسیره، د بلوچستان د غټو او ډیر نفوسه مرکزونو په توګه پشین، لورالایي او ژوب، چې هر یوه په نوموړي کال کې په ترتیب سره په سلو کې د بلوچستان ۸،۷۴ ، ۸،۹۵ او ۸،۳۵ نفوس جوړاوه؛ هم ټولې پښتنې میشتې سیمې دي.

سره لدې چې، پښتانه ددې سر شمیرنې نتایجو ته د شك په سترګه ګوري؛ خو د نفوسو د تراکم توپیر د بلوچو او پښتنو د سیمو ترمنځ روڼ دی. په سر شمیرنه کې، د پښتنو له قوله، پښتنو د پاکستان په وروستۍ(۱۹۹۷) سر شمیرنه کې بشپړ ګډون هم و نکړ. دوی وایي چې د بلوچو د قبایلي نظام د نفوذ له مخې په کوچیاني ډوله بلوچ میشته سیمو کې سر شمیرنه په نورو سیمو کې له سر شمیرنې نه توپیر لري. هلته د بلوچي سردارانو په خوښه د هغوی د قبیلو د خلکو شمار ثبتیږي. د یو شمیر با خبرو بلوچو له قوله اصلي بلوچ میشته سیمه د سند صوبه ده، چې د نیمایي نه زیات نفوس یې په ژبني لحاظ سندیان خو په ختمه بلوچ – براهویان دي.

د پاکستان د ۱۹۸۱ کال سر شمیرنه په بلوچستان کې د نفوسو په سلو کې۲۵،۰۷ پښتو ژبي پښتانه ښیي[۲۵]. خو د یادونې وړ ټکی دادی چې د کندهار له شوراوك نه پخوا را اوښتي بریخ ترینان پښتانه د پاکستاني بلوچستان دنوشکۍ بلوچي ژبي پښتانه دي[۲۶]. پدې برسیره، د بلوچستان بلوچي ژبې" رئیسانان" قبیله ځان بلوچ نه بلکې پښتانه " ترین" بولي. خو، موږ د دقیقو ارقامو د نه درلودلو له مخې دا پښتانه په نظر کې ندي نیولي. په هرحال، د بلوچستان په نفوسو کې دپښتنو او بلوچو – براهویانو ترمنځ د فیصدۍ موضوع یوه نانډریزه ده. نو که دبلوچستان په ټول نفوس کې پښتون او بلوڅ نفوس مساوي هم ونیول شي، د بلوچستان پښتو ژبي پښتانه څه نا څه ۲،۷۶۲،۵۸۰ تنه کیږي.

## د، پښتانه په سند کې:

د پاکستان د ۱۹۸۱ کال سرشمیرنې دسند په ښاري نفوس کې په سلو کې ۶،۴۸ ، په کلیوالي نفوس کې ۰،۶۴ او د ټول سند په نفوس کې په سلو کې ۳،۰۶ پښتو ژبي پښتانه ښودلي دي[۲۷]. خو، یو شمیر با خبره پښتني منابع نه یوازې په سند کې پښتو ژبي پښتانه له پورتني شمار نه زیات ښیي؛ وایي چې یوزیات شمیر غیر پښتو ژبي پښتانه هم په تیره بیا د سند دکراچۍ په بندري تجارتي ښار، حیدرآباد او سیبۍ کې آباد دي. دوی په سند کې یوازې پښتو ژبي پښتانه درې میلیونه، چې د سند د ټول نفوس په سلو کې لس کیږي، ښیي.

د یادونې وړ ده چې، د سند دسیبۍ Sibi د ولسوالۍ یو زیات شمیر خلك سندي ژبي پښتانه دي. د حیدرآباد یو شمیر پښتنو خپله مورنۍ ژبه پریښې او د کراچۍ پښتانه هم په همدی برخلیك اخته دي. په عمومي توګه، سندي پښتانه د سندي ژبو، اردو ژبو په نوم په "سندي" او "مهاجر" قومي- ژبني ګروپونو کې شمیرل شویدي. په هر حال، ویل کیږي چې، پښتو ژبي پښتانه لاهم دسندي پښتنو اکثریت جوړوي.

مونږ اوس اوس د سند دپښتو ژبو او غير پښتو ژبو پښتنو د شمار په هکله دقيق ارقام په لاس کې نلرو. نو ځکه مو په دی څېړنه کې دسند د پښتنو لپاره د پاکستاني باخبرو پښتني منابعو او دولتي خپرو شويو فيصديو په ځای د ټول سند دپښتو ژبو او غير پښتو ژبو پښتنو لپاره د يوې منځنۍ فيصدۍ په توګه د ۶,۴۸ پورتنی عدد او بيا ټول سندي پښتانه په سلو کې ۷۰ پښتو ژبي پښتانه په نظر کې نيولي دي.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | ټول سندي پښتانه (اټکل): | = ۱,۹۱۶,۰۰۰ | × ۶,۴۸% | ۲۹,۵۶۸,۰۰۰ |
| ۲ | پښتو ژبي: | = ۱,۳۴۱,۲۰۰ | × ۷۰% | ۱,۹۱۶,۰۰۰ |
| ۳ | غير پښتو ژبي: | = ۵۷۴,۸۰۰ | - ۱,۳۴۱,۲۰۰ | ۱,۹۱۶,۰۰۰ |

**هـ ، پښتانه په کشمير کې:** د دقيقو ارقامو او معلوماتو د نه درلودلو له کبله مو دا پښتانه په نظر کې ندي نيولي.

**و ، پښتانه په FATA کې:** سره لدې چې پښتانه د FATA د پښتنو شمير له پنځو ميليونو نه زيات ګڼي، خو، مونږ د پاکستان د ۱۹۹۷کال درسمي سرشميرنې له مخې د FATA د پښتو شمير پنځه ميليونه اټکل کړی دی.

په لنډ ډول د پاکستان پښتو ژبي او غير پښتو ژبي پښتانه په لاندې ډول شميرلای شو:

| شمېر | استوګنځي | پښتو ژبي | غير پښتو ژبي | ټول | % |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | NWFP | ۱۳,۸۹۴,۲۶۹ | ۳,۲۸۹,۰۵۶ | ۱۷,۱۸۳,۳۲۵ | ۸۴,۵ |
| ۲ | فاټا FATA | ۵,۰۰۰,۰۰۰ | _ | ۵,۰۰۰,۰۰۰ | |
| ۳ | پنجاب | ۵۵۶,۰۱۶ | ۳,۲۹۲,۲۰۰ | ۳,۸۴۸,۲۰۰ | ۵ |
| ۴ | بلوچستان | ۲,۷۶۲,۵۸۰ | ؟ | ۲,۷۶۲,۵۸۰ | ۴۰ |
| ۵ | سند | ۱,۳۴۱,۲۰۰ | ۵۷۴,۸۰۰ | ۱,۹۱۶,۰۰۰ | ۶,۵ |
| ټول | | ۲۳,۵۵۴,۰۰۰ | ۷,۱۵۶,۰۰۰ | ۳۰,۷۱۰,۰۰۰ | ۲۲,۷ |

## پنجابیان:

د پاکستان د یوې صوبې په توګه "پنجاب" د "پنج آب"، د "پنځو اوبو" یا د "پنځو سیندونو" د بهیر جغرافیه او "پنجابي" ددې جغرافیې د بیلو بیلو قومي ـ ژبنیو ګروپونو د اکثریت ژبه ده. یانې پنجابي د ژبې نوم دی، نه د یوه ځانګړي قومي ګروپ. د پنجاب اوسیدونکي، لکه د افغاني، ایراني او یا پخپله د پاکستان د بلوچو او پښتنو قومي ګروپونو په څیر د ختې او وینې په بنسټ له نورو نه بیل شوي نه دي؛ بلکې د پاکستان د نورو قومي ـ ژبنیو ګروپونو نه د پنجابي ژبې او بیا په خپلو کې زیات زیات د کسب او کار له مخې بیل او ویشل شوي دي. د مثال په توګه مالدار د "ګوجر"، کروندګر د "جټ"، آهنګر د "لوهار" مشران د "ملك" او "چوهدري" او "راجپوت" د پخوانیو باچایانو او راجاګانو د نسلونو د پاتې شونو په توګه نن سبا د بیلو بیلو قومونو بڼه نیولې ده.

د یادونې وړ خبره داده چې، پښتانه، بلوچ، سندیان، سرائیکیان او کشمیریان هم پخپل وار ددې جغرافیې پنجابي ژبي شوي ګروپونه دي. ځنې مهم پنجابي قومي ـ ژبني ګروپونه راجپوت، جټ، ګوجر، بټ، پښتانه، بلوچ، مهر، سوپرا، کهوکر، ملك، لوهار، کمبوه، طوایف، ترکهاڼ، انصاري، راهي، فقیران، چنګړ او نور دي.

جټ او ګوجر د پنجابي ژبني ګروپ مهم جوړونکي توکي دي. د پاکستان د ۱۹۸۱ کال د سر شمیرنې له مخې پنجابي ژبو په سلو کې د پاکستان د ټول نفوس ۴۸،۱۷ نفوس جوړاوه. جټ او ګوجر د دوو مهمو پنجابي ژبو ګروپونو په توګه، که د فیصدۍ د پورتني عدد دوه برخې هم وي؛ نو، د پورتني عدد تر ۳۵ پورې همدا دوه او پاتې ۱۳ نفوس نور ارجل پنجابي ژبي ګروپونه جوړوي. د یو شمیر باخبرو پنجابي ژبو منابعو له قوله د پاکستان په ټول پنجابي ژبي نفوس کې د دې ګرپونو فیصدي په دې ډول اټکلیږي:

جټ په سلو کې ۱۵ ـ ۲۰ (که ۲۰ و نیول شي) - ګوجر ۱۰ ـ ۱۵ (که ۱۵ ونیول شي) - ارجل ۱۳: ټول ټال = ۴۸.

## سندیان :

د ۱۹۸۱ کال د سر شمیرنې له مخې سندي ژبو د پاکستان د ټول نفوس په سلو کې ۱۱،۷۷ نفوس جوړاوه. سند هم دیو شمیر باخبرو بلوچو او سندیانو له قوله یوه بلوچ میشته سیمه ده چې، له نیمایي نه زیات نفوس یې په ختې بلوچ دي. د پورتنۍ فیصدۍ له مخې د پاکستان د ۱۹۹۷ کال د سر شمیرنې له مخې د پاکستان په ټول نفوس کې سندیان په دې ډول شمیرلای شو:

۱۳۵،۲۸۰،۰۰۰×۱۱،۷۷%= ۱۵،۹۲۲،۴۵۶

## سرائیکیان :

د پنجاب د غټو قومي ګروپونو په څنګ کې سرائیکیان د پنجاب یو بل غټ قومي- ژبني ګروپ دی. سرائیکیان ګډ پنجابي- سندي هویت لري. دوی د ۱۹۶۱ کال په

سر شمیرنه کې پنجابیان و ګڼل شول (۲۹) د ۱۹۸۱ کال په سر شمیرنه کې یې د پاکستان په ټول نفوس کې د ۹.۸۳ فیصدۍ په ګڼلو د پنجاب د نورو قومي ګروپونو نه بېل خو دپنجاب دننه خپلواك سرائیکي هویت ترلاسه او په نوي یمه لسیزه کې د خپلواکې صوبې غوښتونکی شول. سرائیکیان په غټه کې دیوه قومي - ژبني ګروپ په توګه په ګډه پنجابي – سندي کلتوري بڼې کې د پاکستان د بېلو بېلو آبادو قومي ګروپونو ویلې شوي ټولنه ده. پښتانه ددې ګروپ یو مهم توکی دی. یوزیات شمیر سرائیکي ژبی لودي، نیازي او عیسی خیل پښتانه په ملتان، بهاولپور، فیصل آباد او ډیره غازي خان کې ان د اسلام د ظهور نه وراندی او بیا دملتان دلودیانو د لومړي سلطنت دوختونو راهیسي آباد دي.

مونږ د دقیقو ارقامو د نه درلودلو له کبله یدې څېړنه کې دا غیر پښتو ژبي پښتانه په نظر کې ندي نیولي. سرائیکیان نه یوازی د پاکستان په ټول نفوس کې د خپلې فیصدۍ له پورتني عدد سره موافق ندي، بلکې په ملتان، بهاولپور او ډیره غازي خان برسیره، فیصل آباد، سرګوډه او رحیم یارخان هم سرائیکي سیمې بولي. د پورتنی فیصدۍ له مخې د پاکستان د۱۹۹۷ کال په ټول نفوس کې سرائیکیان لاندې شمار خپلولی شي:

۱۳۵,۲۸۰,۰۰۰× ۹,۸۳% = ۱۳,۲۹۸,۰۰۰

## مهاجر:

مهاجر هم د ۱۹۸۱کال د خپلې فیصدۍ (۷,۶) له مخې د پاکستان د ۱۹۹۷ کال په ټول نفوس کې لاندې شمار خپلولای شي:

۱۳۵,۲۸۰,۰۰۰× ۷,۶% = ۱۰,۲۸۱,۲۸۰

## بلوڅ:

په بلوچستان کې د بلوچو (بلوڅ + براهویان) فیصدي او شمار په دې صوبه کې د پښتنو په برخه کې څه نا څه توضیح شویدي. خو، د یادونې وړ بل ټکی دادی چې، د سیمې د بلوچو زیات شمیر په کلتوري لحاظ د اوښتو بلوچو په توګه په سند کې آباد او په سندي کلتور کې دل شویدي. د مثال په توګه د سند مهم "تالپور" او "بیجراني" قومي ګروپونه په خته بلوڅ دي (۳۰) خو، مونږ د دقیقو ارقامو د نه درلودلو له کبله دوی په نظر کې ندي نیولي. د پاکستان د ۱۹۸۱ کال سرشمیرنه د بلوچستان غیر پښتو او غیر بلوچي، براهوي ژبی نفوس په سلو کې ۱۷,۹۴، پښتو ژبي ۲۵,۰۷، بلوچي ژبي ۳۶,۳۱ او براهوي ژبي په سلو کې ۲۰,۶۸ ښیي (۳۱) . که په بلوچستان کې بلوڅ- براهوي او پښتون نفوس برابر هم و منل شي نو د بلوچستان بلوڅ – براهویان په لاندې ډول ګڼلای شو:

د بلوچستان ټول غیر پښتانه، غیر بلوچي – براهوي:

۶,۷۳۸,۰۰۰ ×۱۸% = ۱,۲۱۲,۸۴۰

بلوڅ ........................ ۵,۵۲۵,۱۶۰×۳۰% =۱,۶۵۷,۵۴۸

براهوي ........................ ۵,۵۲۵,۱۶۰×۲۰% = ۱,۱۰۵,۰۳۲

د بلوچستان ټول بلوچ – براهوي ........................ ۲,۷۶۲,۵۸۰

د پاکستان نور بلوچ – براهویان:

شمال لویدیزه سرحدي صوبه[۳۲] ۲۰,۳۴۳,۰۰۰×۰,۰۵% =۱۰,۱۷۱

پنجاب[۳۳] ........................ ۷۳,۱۶۰,۰۰۰×۰,۵۸% =۴۲۴,۳۲۸

سند[۳۴] ........................ ۲۹,۵۶۸,۰۰۰× ۵,۵۹% =۱,۶۵۲,۸۵۱

ټول: ........................................ ۲,۰۸۷,۳۵۰

د پاکستان ټول بلوچ – براهویان........................ ۴,۸۵۰,۰۰۰

په اسلام آباد کې میشت بلوچ – براهویان چې د پاملرنې وړ نفوس نه شي جوړولای، د ارقامو د نه درلودلو له کبله په دې څېړنه کې په نظر کې نه دي نیول شوي. خو په فرهنګي لحاظ سندي شوي بلوچان د پاکستان په ټول نفوس کې د لږ ترلږه لس میلیونه نفوس په جوړولو، ددې هېواد په ټول نفوس کې د سندیانو فیصدي ښکته راوستلای شي.

د شمار له مخې د پاکستان غټ قومي ـ ژبني ګروپونه په لاندې ډول دي:

| ګڼه | قومي ـ ژبني ګروپونه | | نفوس | د پاکستان د ټول نفوس په سلو کې |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | پښتانه | | ۳۰,۷۱۰,۰۰۰ | ۲۲,۷ |
| ۲ | پنجابي | جټ | ۲۷,۰۵۶,۰۰۰ | ۲۰ |
| ۳ | ژبي | ګوجر | ۲۰,۲۹۲,۰۰۰ | ۱۵ |
| ۴ | سندي ژبي | | ۱۵,۹۲۲,۴۵۶ | ۱۱,۷ |
| ۵ | سرائیکي ژبي | | ۱۳,۲۹۸,۰۰۰ | ۹,۸۳ |
| ۶ | مهاجر | | ۱۰,۲۸۱,۲۸۰ | ۷,۶ |
| ۷ | بلوچ | | ۴,۸۵۰,۰۰۰ | ۳,۵۸ |
| ټول | | | ۱۲۲,۴۰۹,۷۳۶ | ۹۰,۴۸ |
| کوچني قومي ـ ژبني اقليتونه | | | ۱۲,۸۷۰,۲۶۴ | ۹,۵۲ |
| ټول ټال | | | ۱۳۵,۲۸۰,۰۰۰ | ۱۰۰ |

## ۳- ایران:

د ۱۹۹۵ کال (۱۳۷۴ لمریز) د ایران د دولتي سر شمیرنې له مخې د ایران نفوس ۶۱,۱۸۳,۰۰۰ ښودل شوی و[۳۵]. په ۱۹۹۷ کال کې دا نفوس یوې بلې منبع ۶۲,۲۳۱,۰۰۰ ښودلی دی[۳۶]. د ایران غټ قومي ګروپونه فارس Persian، آذري Azeri، کرد Kurd، عرب Arab، بلوچ Baluch قشقاري Qashqari، ترکمن Turkmen، بختیاري Bakhtiari، لر Lur، ارمنیان Armenian او نور دي[۳۷]. فارسیان دایران د اکثریت قومي ګروپ په توګه د ۲۸,۴۴۰,۰۰۰ نفوس په درلودلو د ایران د ټول نفوس په سلو کې ۴۵,۶ کېږي[۳۸].

**۴- ازبکستان**: د ازبکستان غټې قومي ګروپونه د شمار له مخې په لاندې ډول دي:

| شمیر | قومي ګروپونه | نفوس | فیصدي |
|---|---|---|---|
| ۱ | ازبك | ۱۶,۶۰۰,۰۰۰ | ۷۱,۵ |
| ۲ | روسان | ۲,۵۴۰,۰۰۰ | ۱۱ |
| ۳ | تاجك | ۱,۰۳۰,۰۰۰ | ۴,۴ |
| ۴ | نور کوچني قومي اقلیتونه | ۳,۰۳۶,۰۰۰ | ۱۳,۱ |
| ټول | | ۲۳,۲۰۶,۰۰۰ | ۱۰۰ |

**۵- تاجکستان**: د دې هېواد د غټو قومي ګروپونو شمار او فیصدي په دی ډول دي:

| شمیر | قومي ګروپونه | نفوس | فیصدي |
|---|---|---|---|
| ۱ | تاجك | ۳,۶۹۰,۰۰۰ | ۶۲ |
| ۲ | ازبك | ۱,۳۷۰,۰۰۰ | ۲۳ |
| ۳ | روسان | ۵۸۰,۰۰۰ | ۱۰ |
| ۴ | نور کوچني قومي اقلیتونه | ۳۰۵,۰۰۰ | ۵ |
| ټول | | ۵,۹۴۵,۰۰۰ | ۱۰۰ |

**٦. ترکمنستان**: د شمار په ترتیب په ترکمنستان کې آباد قومي ګروپونه په لاندې ډول دي:

| شمیر | قومي ګروپونه | نفوس | فیصدي |
|---|---|---|---|
| ۱ | ترکمن | ۲,۹۹۰,۰۰۰ | ۶۵ |
| ۲ | تاجك | ۵۰۰,۰۰۰ | ۱۱ |
| ۳ | روسان | ۵۰۰,۰۰۰ | ۱۱ |
| ۴ | ازبك | ۳۶۰,۰۰۰ | ۸ |
| ۵ | نور کوچني قومي اقلیتونه | ۲۲۴,۰۰۰ | ۵ |
| ټول | | ۴,۵۷۴,۰۰۰ | ۱۰۰ |

## د سیمې د هیوادونو نفوس د شمار په ترتیب:

۱. پاکستان ............ ۱۳۵,۲۸۰,۰۰۰
۲.ایران............ ۶۲,۲۳۱,۰۰۰
۳. افغانستان............ ۳۰,۰۰۰,۰۰۰
۴. ازبکستان............ ۲۳,۲۰۶,۰۰۰
۵. تاجکستان............ ۵,۹۴۵,۰۰۰
۶. ترکمنستان............ ۴,۵۷۴,۰۰۰

==============================

ټول ټال ............ ۲۶۱,۲۳۶,۰۰۰

## د سیمه ییزو قومي - ژبنیو ګروپونو ټول ټال نفوس:



### ۱- پښتانه*

| | |
|---|---|
| د افغانستان پښتانه | ۱۸,۸۲۲,۰۰۰ |
| د پاکستان پښتانه | ۳۰,۷۱۰,۰۰۰ |
| ټول پښتانه لږ تر لږه | ۴۹,۵۳۲,۰۰۰ |

### ۲- بلوچ

| | |
|---|---|
| افغان بلوچ | ۳۰۰,۰۰۰ |
| ایراني بلوچ | ۱,۴۲۰,۰۰۰ |
| پاکستاني بلوچ | ۴,۸۵۰,۰۰۰ |
| ټول بلوچ | ۶,۵۷۰,۰۰۰ |

### ۳- ازبک

| | |
|---|---|
| ازبکستان | ۱۶,۶۰۰,۰۰۰ |
| تاجکستان | ۱,۳۷۰,۰۰۰ |
| ترکمنستان | ۳۶۰,۰۰۰ |
| قرغیزستان | ۵۷۰,۰۰۰ |
| قزاقستان | ۷۲۰,۰۰۰ |
| افغانستان | ۱,۸۳۰,۰۰۰ |
| ټول ازبك | ۲۱,۴۵۰,۰۰۰ |

### ۴- تاجک

| | |
|---|---|
| تاجکستان | ۳,۶۹۰,۰۰۰ |
| افغانستان | ۳,۷۱۴,۰۰۰ |
| ازبکستان | ۱,۰۳۰,۰۰۰ |
| ترکمنستان | ۵۰۰,۰۰۰ |
| ټول تاجك | ۸,۹۳۴,۰۰۰ |

* نه یوازې د هندوستان پښتانه، چې د برتانوي هند د ۱۹۰۱ کال د سر شمیرنې له مخې ۳,۴۰۷,۷۰۱ تنه ثبت شوي (۱) وو او اوس به (دوه زرم میلادي کال) خامخا له ۶۰,۰۰۰,۰۰۰ اوښتي وي، د ایران، مرکزي آسیا او د نړۍ د نورو هیوادونو آباد پښتانه هم پدې شېرنه کې په نظر کې نیول شوي ندي. پدې شېرنه کې مونږ یوازې دافغانستان او پاکستان او هغه هم زیات، پښتو ژبې پښتانه په نظر کې نیولي دي.

(1) Zalmai Hewadmal. *The History of Pashto literature in India (The Growth, Creation and Developmental phases of Pashto language and literature in India,* 1994 edition. Lahore, p., 37.




۵- ترکمن

ترکمنستان.................................................. ۲,۹۹۰,۰۰۰

افغانستان.................................................. ۸۰۷,۰۰۰

ایران.................................................. ۹۷۰,۰۰۰

ټول ترکمن.................................................. ۴,۷۶۷,۰۰۰

۶- روسان *

ازبکستان.................................................. ۲,۵۴۰,۰۰۰

تاجکستان.................................................. ۵۸۰,۰۰۰

ترکمنستان.................................................. ۵۰۰,۰۰۰

ټول روسان ( له افغانستان سره د مرکزي اسیا د ګاونډیو هیوادونو روسان)..... ۳,۶۲۰,۰۰۰

غټ غټ سیمه ییز قومي ـ ژبني ګروپونه:

| ګڼه | قومي- ژبني ګروپونه | نفوس | د سیمې د ټول نفوس په سلو کې |
|---|---|---|---|
| ۱ | پښتانه | ۴۹,۵۳۲,۰۰۰ | ۱۹ |
| ۲ | فارسیان | ۲۸,۴۴۰,۰۰۰ | ۱۱ |
| ۳ | جټ | ۲۷,۰۰۰,۰۰۰ | ۱۰,۳۳ |
| ۴ | ازبك | ۲۱,۴۵۰,۰۰۰ | ۸.۲ |
| ۵ | ګوجر | ۲۰.۲۹۲,۰۰۰ | ۷,۷۶ |
| ۶ | سندیان | ۱۵,۹۲۲,۴۵۶ | ۶ |
| ۷ | سرائیکیان | ۱۳.۲۹۸,۰۰۰ | ۵.۱ |
| ۸ | مهاجر | ۱۰.۲۸۱,۲۸۰ | ۴ |
| ۹ | تاجك | ۸.۹۳۴,۰۰۰ | ۳,۴ |
| ۱۰ | بلوچ | ۶,۵۷۰,۰۰۰ | ۲,۵۱ |
| ۱۱ | ترکمن | ۴,۷۶۷,۰۰۰ | ۱,۸۲ |
| ۱۲ | روسان | ۳,۶۲۰,۰۰۰ | ۱.۳۸ |
| ۱۳ | هزاره** | ۲,۶۹۷,۰۰۰ | ۱ |
| ټول | | ۲۱۲,۸۰۳,۰۰۰ | ۸۱ |
| نور قومي ـ ژبني اقلیتونه | | ۴۸,۴۳۳,۰۰۰ | ۱۹ |
| ټول ټال | | ۲۶۱,۲۳۶,۰۰۰ | ۱۰۰ |

* د یادونې وړده چې د قرغیزستان د ۱,۱۵۰,۰۰۰ او د قزاقستان د ۷,۹۵۰,۰۰۰ روسانو په ګډون په ټوله مرکزي آسیا کې ۱۲,۷۲۰,۰۰۰ روسان آباد دي ( وګورئ ۳۶ اخځ). د۳۶ اخځ له مخې د مرکزي آسیا د هیوادونو او قومي-ژبنیو ګروپونو نفوس د ۱۹۹۷ کال نفوس دی. وګورئ همدا اخځ.

** د پاکستان په بلوچستان کې د هزاره ګانو د شمار د نه درلودلو له کبله مو دا هزاره ګان په نظر کې ندي نیولي.

# اخځونه

١- محمد حسن کاکړ، رڼا او دفاع، د محمد حسن سهاك مقاله: بحثی پیرامون نفوس کشور، ۲۶-۲۷ مخونه، د ساپي د پښتو څیړنو او پراختیا د مرکز چاپ، ۱۹۹۹، پېښور.
(۲، ۳، ۴، ۶) - پورتنی آخځ، ۳۶۸ مخ.
۵- میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ: ۱۱ مخ، ۱۹۶۷، کابل.
۷- پوهاند لطف الله ساپی، د خپلواکی مجله، دریمه- څلورمه ګڼه، ۱۰۵-۹۴ مخونه، د آزاد افغانستان د لیکوالو ټولنه، ۹۶-۱۹۹۵، پېښور.
8. Story of Pakistan. A Multimedia CD. Jin Technologies, 1999.
۹ - وګورئ (۷) اوم اخځ.

10. Wak Foundation for Afghanistan, "*The Ethnic Composition of Afghanistan*", KOR, p.27, Peshawar, 1999.
11. Ibid: pp.30-34.
12.Ibid, p.34.
13. *Story of Pakistan*. A Multimedia CD, Jin Technologies, 1999.
14. Selig S.Harrison (1986), "Ethnicity and the Political Stalemate in Pakistan", in A. Banuazizi and M. Weiner (eds). *The State, Religion and Ethnic Politics: Afghanistan, Iran, and Pakistan,* Syracuse. Syracuse University Press, P. 269.
15.1981 Census
*Report of North West Frontier Province(NWFP),* December, 1984. Population Census Organization. Statistics Division, Government of Pakistan. Islamabad. p. 10. Table 2:6- Percentage of Household by languages spoken and Rural/ Urban areas: 1981.
16. 1981 Census
*Report of North West Frontier Province(NWFP),* op cit, p.8 Table 2:3- Areas. Population, Density and Household size by district; 1980-81.
۱۷- زما خپله څیړنه، واك فونډیشن، ۲۰۰۰-۱۹۹۹ (مؤلف).

18. 1981 Census
*Report of Panjab Province*, December 1984, p. 9, Table 2:3- Area. Percentage and Household size by district: 1980 –81.
۱۹- زما خپله څیړنه، واك فونډیشن، ۲۰۰۰-۱۹۹۹ (مؤلف).

20. 1981 Census
*Report of Panjab Province,* op. cit.p.10. Table 2:6- Percentage of Household by languages spoken and Rural / Urban areas :1981.
21. 1981 Census
*Pakistan* / December1984, Population Census Organization, Statistics Division, Government of Pakistan, Islamabad, p.7. Table 2:2- Areas, Population, and Density by Province, 1981.
۲۲- واك فونډیشن د افغانستان لپاره، د افغانستان قومي جوړښت، د ساپی دپښتو څیړنو او پراختیا د مرکز چاپ، ۷۴ مخ، پېښور، ۱۹۹۸ کال.

23. 1981 Census
*Pakistan,* op. cit, p.7.
24: 1981Census

*Report of Baluchistan Province*. p. 8.
25. Ibid. p. 10. Table 2:6.

۲۶- زلمی هېواد مل، هیله، ۱۷۵ مخ، ۱۷ گڼه، ۱۳۷۸ لمریز کال، پېښور.

27. 1981 Census
*Report of Sind Province*. December 1984. Population Census Organization. Statistics Division, Government of Pakistan. Islamabad, Table 2:6- Percentage of Household by Languages spoken and Rural / Urban Areas: 1981.

۲۸- زما خپله څېړنه ، د یو شمیر باخبرو محلي منابعو او شخصیتونو له قوله، واك فونډېشن ، ۲۰۰۰-۱۹۹۹(موءلف).

29. Selig S. Harrison. op, cit. P. 269.

۳۰- زما خپلې څېړنې( د سند او بلوچستان د یو شمیر باخبرو منابعو او شخصیتونو له قوله) January-February. 2000.

۳۱- و گورئ ۲۵ اخځ.

۳۲. و گورئ ۱۶اخځ ، ۱۰ مخ، ۶:۲ جدول

۳۳. و گورئ ۱۸ اخځ ، ۱۰ مخ، ۲: ۶ جدول

۳۴ . و گورئ ۲۷اخځ ،۹ مخ، ۶:۲ جدول

۳۵. فرهنگ جغرافیایي جهان، ۴۳ مخ، موسسه جغرافیایي و کار توگرافي سحاب، ۱۳۷۴ لمریز کال: ایران.

۳۶. محمدحسن کاکړ، رڼا او دفاع، د محمدحسن سهاك مقاله، پورتنی اخځ، ۳۵ مخ.

37. Patricia J. Higgins (1986). Minority – State Relations in contemporary Iran, In Ali.Banuazizi and M. Weiner (eds), *The State, Religion and Ethnic Politics: Afghanistan, Iran, and Pakistan*. p. 178.

۳۸- و گورئ ۳۶ اخځ.

## درېيمه برخه:

# فدراليزم

## د افغانستان دقومي جوړښت په هنداره کې

په دې برخه کې په افغانستان کې د قومونو په بنسټ د ولاړ فدراليزم دجوړېدلو امکانات او ددې جوړېدو په نتيجه کې په سيمه ييزې سياسي جغرافيې باندې د سيمه ييزو قومي ګروپونو د احتمالي پيوستون تاثير څيړو.

## الف. په جنوب کې

### ۱. د پښتانه نفوس په بنسټ:

#### ۱,۱. د افغان پښتانه نفوس په بنسټ:

د پښتنو په ګډون افغانان په شپيتمه لسيزه کې ايډيالوژۍ د سخت درېځۍ په کمونستي (۹۲-۱۹۶۴) او اسلامي (۲۰۰۰-۱۹۶۴) دواړو بڼو کې سره وويشل. په يوه معتدله عنعنوي بڼه کې، پښتانه لږ تر لږه د شلمې پېړۍ له پيل نه د وهابي بنسټپالنې او ورپسې د معتدلې پنځ پيري سخت درېځۍ، د شلمې پېړۍ د شپيتمې او اويا يمې په دوو لسيزو کې داخواني سخت درېځۍ، په آتيايمه لسيزه کې له روس سره په جګړه کې په عملي ډول د اخواني او وهابي دواړو سخت درېځيو - بنسټ پالنو او په نوييمه لسيزه کې د طالبانو او عنعنوي خو سياسي شويو ملايانو د بنسټپالنې Islamic Traditional Fundamentalism د ايډيالوژيك نفوذ لاندې راغلي دي.

خو، لدې سره سره، د اسلامي تصوف په بڼه کې "معتدل اسلام" له يوې او لاهم ديوه ژوندي کلتوري- سياسي نظام په توګه" پښتونولي" او د پښتنو د "سياسي قدرت" د پيړيو پيړيو تجربه له بلې خوا، ددې اسلامي سخت درېځۍ په وړاندې دِ يوه "باالفعل" نه، خو، د يوه "بالقوه" ګواښ په توګه له نظره نشي غورځيداى:

- کيداى شي دا"باالقوه" او "منقبضه" انرژي خپله پخپله له يوې خوا او د قومونو په بنسټ د ولاړ فدراليزم په واسطه له بلې خوا" آزاده" ، په يوې" باالفعل" انرژۍ بدله او د اسلامي سخت درېځۍ د سيوري لاندې ساتل شوي افغان پښتانه له خپل ننني "بشري- باالقوه" غير عامل سياسي حالت نه يوه "سياسي- باالفعل" حالت ته وړتيل وهي. نو:

د فدراليزم د جوړېدو د اخ او ډب په دغسې يوه خام ختلي سياسي چاپېريال کې يوه پاخه" باالفعل – سياسي" حالت ته د پښتنو وراوښتل غټ سيمه ييز سياسي عواقب درلوداى شي:

- د افغان نشنلیزم دبیارغونې په بنسټ د یوه موټي افغانستان بیا جوړول او د فدرالیزم مخنیوی؛
- د پاکستان په تاوان، د فدرالیزم د عواقبو په توګه ( په کمزوري اټکل ) له یوه موټي افغانستان سره د ډیورنډ لاین د جنوب پښتانه د یووالي په صورت کې دلوی افغانستان بیا جوړول؛
- دافغانستان او پاکستان، دواړو، د ټوټه کیدو په بیه ( په کمزوري اټکل ) د لوی پښتونستان یا پښتونخوا جوړول؛
- او یا د پاکستان په ګټه، په مستقیم یا غیر مستقیم، په یوه نه یوه ډول ( په ډاډه اټکل ) د نني افغانستان ټوټه ټوټه کول.

پښتانه د پورتنیو څلور واړو احتمالي سیاسي عواقبو ستراتیژیکې څیړنې ته اړتیا لري. خو، په یوه څغلند نظر هم د لیدو ده چې، نه یوازې د قومونو په بنسټ د ولاړ فدرالیزم، بلکې د اسلامي سخت دریځۍ په لومه کې د ګیر پښتانه نشنلیزم په خیټه کې دا څلور واړه "سیاسي عواقب" د څلورو" باالقوه انرژیو" په توګه ژوندي دي. خو:

- دا انقباض او انبساط ټول او ټول، د سیمه ییزو قوتونو، په تیره بیا د پاکستان، د" افغان، پښتانه" پالیسۍ د نظر لاندې دی او دی؛
- همدا نظربندي ده چې، له اویا یمې لسیزې، په تیره بیا له روس سره د جګړې له پیل راهیسې، دپښتنو د سیاسي مشرۍ پګړۍ پرون د اخواني - وهابي او نن د طالب اوملا په بڼه کې داسلامي بنسټپالنې او سخت دریځۍ په سر ایښې ده.
- په نوموړې نظر بندۍ او منقبض حالت کې لا پاتې کیدل به د افغان نشنلیزم او معتدل اسلام په تاوان او د پاکستاني نشنلیزم او اسلامي سخت دریځۍ په ګټه د سیمې دا قومي اکثریت ګروپ په سیاسي- کلتوري بنسټ، نور هم ژوبل کړي.

خو، لدې ټولو سره سره، د افغانستان په کچ، نه یوازې په خپل قومي اکثریت موقف، بلکې په شمال، جنوب، ختیز او لویدیز کې آباد افغان پښتانه په تخنیکي لحاظ هم د قومونو په بنسټ ولاړ فدرالیزم ناشونی ګڼوي. افغان پښتانه څه داسلامي سخت دریځۍ نه په خپلواك باالفعل سیاسي او څهددې سخت دریځۍ د لاس لاندې په یوه "باالقوه" حالت کې هم له فدرالیزم سره اړخ نشي لګولی:

۱. د خپلو سیاسي- اقتصادي ګټو په بنسټ نه غواړي یو موټی افغانستان په فدرالیزم ټوټه ټوټه او د شمال خپلې طبیعي زیرمې او ځمکنی ملکیت له لاسه ورکړي؛
۲. د فدرالیزم د عواقبو په توګه، بیا هم پښتانه نه غواړي، په شمال او جنوب کې د افغان قومي ګروپونو په بې ځایه کیدنې او بیا مېشتیدنې د نویو قومي- نژادي خونړیو پېښو یوه داسې تیره کیږدي، چې په اسانۍ شمال او جنوب ته غزیدای شي.

## ۱. ۲. د ډیورنډ لاین د جنوب پښتانه نفوس په بنسټ:

پاکستانی "ملي احساس"، "پاکستاني کیدل" او "پاکستاني هویت" ته د پاکستاني پښتنو وفاداري په افغانستان کې د فدرالیزم د اوږدې مودې له عواقبو سره نېغې اړیکې لرلای شي. دا خبره چې په افغانستان کې به د قومونو په بنسټ ولاړ فدرالیزم دافغانستان، پاکستان، یا دواړو، د ټوټه کیدو په بیه د افغانستان او پاکستان څه نا څه پنځوس میلیونه پښتانه یو کړي، په یوه بنسټ لواړه او په بل دومره لواړه نه ده:

د پاکستاني نشنلیزم په لاس د اسلامي سخت دریځی په لومه کې د ګیر افغان، پښتانه نشنلیزم په بنسټ دا خبره لواړه ده:

- پاکستان، اسلامي جمهوریت نومول، د فیوډالیزم او پوځ په څنګ کې په سني اسلام تکیه او د لږترلږه ۳۳,۰۰۰ مدرسو احداث[۱]، د کشمیر مسئلې ته د اسلامي جهاد نړیوال کچ ورکول، له خپله ځانه اخوا، خو د شمال او جنوب په لارو ګودرو د اسلامي سخت دریځی او بنسټپالنې وربرابرول، ټول او ټول په ډیر مهارت له اسلام نه د پاکستاني نشنلیزم د پخېدنې د سونګ د اصلي مادې په توګه کار اخیستل دي.
- په پاکستان کې پرونی محلي نشنلیزم په خپله سندي، بلوچي او پښتني بڼه کې نن سبا لګیا دی د پاکستاني کیدنې او پاکستاني نشنلیزم په قالب کې. په تیره بیا د وروستیو دوو لسیزو راهیسې، ځان نیسي. د پاکستاني نشنلیزم په بټۍ کې د محلي نشنلیزم د پرونیو غټو غټو سټو په ویلې کېدو د "پاکستاني کیدلو" احساس پیاوړی کیږي او پاکستانی نشنلیزم لګیا دی پخیږي. په پاکستاني پوځ او بیروکراسۍ کې ځای په ځای شوی پښتون پدې پخلي کې لوی لاس لري.
- په یوه "منقبض- بالقوه" حالت کې به د پښتانه نشنلیزم په لاپاتې کیدو د ډیورنډ لاین د جنوب FATA په Provincially Administered Tribal Areas (PATA) (Frontier Regions) او بیا به په Settled Areas (بشپړې ایل شوې سیمې) باندې په بدلیدو سره د پاکستاني نشنلیزم په بټۍ کې ویلې او د ډیورنډ لاین نه نیولې د هندوکش تر جنوبي لمنو پورې افغان پښتني سیمې به په Afghan FATA بدلیږي. Frontier Regions (سرحدي حوزې) به هم په جنوب کې د ویلې کیدو او په شمال کې د جوړېدو همدا لار نیسي. خو:

د اسلامي سخت دریځی د سیاسي او کلتوري برلاسۍ نه د خلاصون او یوه "بالفعل- سیاسي" حالت ته د افغان، پښتانه نشنلیزم په وراوښتلو داخبره ځکه لواړه نه ده چې:

- د ویلې کیدو او هضمولو دا مرۍ د پاکستاني نشنلیزم د خوراك لپاره ډېره غټه ده:

- خپل "بالفعل- سیاسي" حالت ته د افغان نشنلیزم اوښتل سیمه ییزې ستراتیژیکي محاسبې بدلولای شي:
- د پاکستاني او افغاني نشنلیزم تر منځ، د فاصلې په توپیر، یو شمیر شریك سیمه ییز ستراتیژیك جغرافیا یي امکانات لاهم ژوندي پاتې دي:
- د FATA، Frontier Regions او Settled Areas ( بشپړې ایل شوې سیمې، د مثال په توګه NWFP) د درې سیاسي جغرافیو شته والی د پاکستاني کیدنې د پخلي خامې او په خپل ځان باندې د پاکستاني نشنلیزم د بې باورۍ ښکاره نښې دي:
- د FATA سیاسي جغرافیه چې پخپل ۲۷,۲۲۰ مربع کیلو متره [۲] پراخوالي کې یې لږ تر لږه پنځه میلیونه پښتون آباد ساتلي، لاهم د چولستان، یاغستان، علاقه غیر او اجنسۍ Agencies په نومونو یادیږي. په یوه پیړۍ کې (۱۸۷۹-۱۹۷۳) له جوړو شویو ۱۴ اجنسیو [۳] نه تر نن پورې د یو شمېر اجنسیو په ادغام پاتې اوه اجنسۍ (FATA) لاهم د پاکستاني نشنلیزم په قول اهلي شوي نه دي.
- Frontier Regions (سرحدي حوزې)، په خپل څه نا څه ۵۰۰۰ مربع کیلومتره پراخوالي، لاهم بشپړه ایل شوې سیمه نه ګڼل کیږي.
- په بله ژبه، د ډیورنډ لاین د جنوب د پښتنانه نفوس په سلو کې ۱۷ لاهم په پاکستاني نشنلیزم کې د ویلي کیدو او شکل نیولو ورتیا نه لري؛ دا توکي لاهم د پاکستاني نشنلیزم په بتۍ کې لواړ پراته دي.
- همدلته ده چې لومړۍ FATA او بیا Frontier Regions ، دواړه، د پاکستاني او افغاني نشنلیزم، دواړو، په نظر ستراتیژیکې سیاسي جغرافیې دي.
- په دې سربېره، په "پښتونخوا" باندې د ۱۰۱,۷۴۱ مربع کیلو متره پراخوالی [۴] لرونکې شمال لویدیزې سرحدي صوبې( North West Frontier Province, NWFP) په نومولو کې د پاکستاني نشنلیزم پاتې راتلل د ډیورنډ لاین د جنوب په آباد پښتنانه، ددې نشنلیزم بله بې باوري ده. نو، د شمال په خطر سربېره، د پاکستاني نشنلیزم په خیټه کې دننه، د یوه باالقوه یا باالفعل، خطر شته والی دی، چې په افغانستان کې د قومونو په بنسټ له ولاړ فدرالیزم نه ډار لري؛ دا سې یو فدرالیزم چې په غالب ګومان په یوه سیمه ییز کچ د سیاسي جغرافیې له ټوټه کونې نه ښکته اهداف نشي تعقیبولای.
- سره له دې چې، د پاکستاني نشنلیزم تومنه، لږ تر لږه د تیرو شلو کلونو راهیسې، لګیا ده د افغان نشنلیزم په بیه ځان نیسي؛ بیا هم په شمال کې پښتون او افغان نشنلیزم، د خپلې نننۍ کمزورۍ سره سره د دوو پیاوړو قومي – سیاسي فکتورونو په توګه له نظره نه شي غورځولای.
- د افغان نشنلیزم بالفعل خاموالی خو بالقوه پوخوالی، د پاکستاني نشنلیزم بالفعل پوخوالی خو بالقوه خاموالی او نور ټول او ټول هغه بنسټیز او حسابي واقعیتونه دي، چې په افغانستان کې د فدرالیزم له برخلیك سره نېغې اړیکي لري. نو:




له ١٩٦٤ (١٣٤٣ لمریز) کال نه وړاندې د هېواد اداري سیاسي واحدونه (ولایتونه)

اخځ: ل. ډوپري، افغانستان، ١٥٦ مخ. ١٩٨٠

پښتو ژباړه: د ختیځ بیا رغونې اداره (کور)




له ۱۹٦٤ (۱۳٤۳ لمرین) کال نه راوروسته د هېواد اداري سیاسي واحدونه (ولایتونه)

(په اتیایمه لسیزه کې دا اداري واحدونه ۲۹ ته ورسیدل.)

• د ولایتونو مرکزونه

اخځ: ل. دوپرې، افغانستان، ۱۵۷ مخ، ۱۹۸۰

پښتو ژباړه: د ختیځ بیا رغونې اداره (کور)

په ۱۹۴۰ لسیزه کې نارینه و ته دعکس لرونکو پیژند پاڼو د ویشلو په نتیجه کې د ګډ هېواد په توګه په " افغانستان" او دټولنې په " افغاني" هویت باندې د ټولو افغان قومي ګروپونو موافقې د " دولتي حاکمیت" د لاټینګبنت، د " ملي احساس" د لاپیاوړتیا او " ملي ټولنې" د جوړېدو بل ښه تمرین وکړ. د هېواد دسیاسي - اداري یووالي په توګه په ۱۹۶۴ کال کې د سمتونو په بنسټ د ولاړ زاړه اداري- سیاسي سیستم په ځای د ۲۸ او بیا د ۲۹ ولایتونو په بنسټ د نوي اداري - سیاسي سیستم [۱] منځ ته راتګ د پورتنیو ملي اهدافو د خوندي کولو یوه بله بریالۍ تجربه وه.

د دیموکراسۍ لسیزې ( ۱۹۷۳ - ۱۹۶۴ ) په افغانستان کې د " دولت "، " ټولنې " او "ملي احساس" د پیاوړتیا یون په ښنو وواهه. په ټولنه کې " دولتي حاکمیت" کمزوری او دبېلو بېلو قومي ګروپونو په منځ کې د" ملي پیوستون" خام کوشیرونه و خوزیدل. د اقلیتونو د کمزوري " ملي احساس" او د اکثریت د کمزوري " ملي مسئولیت" په دغسې یوه ذهني او عیني چاپیریال کې کمونستي او اسلامي سخت دریځیو، دواړو، په سر راپورته کولو، د "ملي احساس" او" ملي پیوستون" خامه تومنه لاخامه او خرابه کړه. دواړو سخت دریځو قوتونو په ۷۸ - ۱۹۶۴ دوره کې د ملي ارزښتونو په وړاندې " تیوریکي" او په ۹۲ - ۱۹۷۸ دوره کې " عملي- پوځي " زور ازموینه وکړه؛ په پای کې سیاسي قدرت ته په رسېدو سره اسلامي سخت دریځۍ او بنسټپالنې په ۹۷ - ۱۹۹۲ دوره کې هېواد په څلورو نژادي -سیاسي او ۲۰۰۰ - ۱۹۹۷ دوره کې په دوو نژادي - مذهبي ټوټو وویشه. د"کمونستي" ایډیالوژۍ په بنسټ په ۹۲ -۱۹۷۸ دوره کې په عملي ډول د "کمونستي" او د"دین" به بنسټ په ۲۰۰۰ - ۱۹۷۸ دوره کې د اسلامي سخت دریځۍ د "ټولنې" او "دولت" د جوړونې عمل په افغانستان کې د کلتور او ایډیالوژۍ ترمنځ عنعنوي انډول خراب او له ایډیالوژۍ نه یې د ملي ارزښتونو او کلتور په قربانولو د " ملي ایډیالوژۍ" او " ملي احساس" شیرازه له بېخه وایسته.

غیر افغاني غوښتنو ته د هڅونې په نتیجه کې نن سبا یو شمیر افغان اقلیتونه، نه " افغانستان" او نه دټولنې" افغاني" هویت، یو هم، په رسمیت نه پیژني. تر دې چې ځنې ښتانه اسلامي سخت دریځي اخوانیان، وهابیان او طالبان د" افغاني" په ځای د " اسلامي" هویت خبره کوي.

په ۹۷ - ۱۹۹۲ دوره کې د شمال ائتلاف د دوو مهموغړو په توګه د ازبکو " جنبش ملي اسلامي" او د هزاره ګانو " حزب وحدت اسلامي" په ګډه د هزاره جات (کرمان) د خود مختاره ایالت جمهوریت، د لویدیز د خود مختاره ایالت جمهوریت ( هرات)، د شمال د خودمختاره ایالت جمهوریت ( مزارشریف) او دجنوب د خود مختاره ایالت جمهوریت ( کندهار) په څلورو ټوټو باندې د یوه موټي افغانستان د ویشلو په دود. په (۱۷) فصلونو او ۲۷۲ مادو کې د فدرالي سیستم اساسي قانون جوړ کړ [۲].

- په افغانستان کې د قومونو په بنسټ ولاړ فدراليزم بنايي د دغسې لوارو ملي او سيمه ييزو قومي، سياسي شرايطو په چاپيريال کې، د افغان نشنليزم په گټه، پښتون نشنليزم تحريک کړي:

## ۳,۱. د ټول پښتانه نفوس په بنسټ:

له اټک نه نيولې تر ډيورنډ لاين پورې په سلو کې د سيمې د ټولو پښتنو ۶۰ (څه ناڅه ديرش ميليونه)، له ډيورنډ لاين نه نيولې د هندوکش تر جنوبي لمنو پورې په سلو کې دسيمې د ټولو پښتنو ۳۲ (څه نا څه ۱۵ ميليونه)، او د هندوکش شمال ته په سلو کې دسيمې د ټولو پښتنو ۸ ( څه نا څه څلور ميليونه)، ټول ټال پنځوس ميليونه، پښتانه آباد دي. په بله ژبه، دسيمې د ټولو پښتنو په سلو کې شپېته د اکثريت قومي گروپ په توگه د ډيورنډ لاين جنوب ته د پاکستان د ټول نفوس په سلو کې ۲۲,۷ [5] په څه نا څه دوه نيم لکه مربع کيلومتره پراخوالي [6] او په سلو کې پاتې څلوېښت پښتانه د ډيورنډ لاين شمال ته په سلو کې د ۶۳ افغان نفوس په جوړولو د اکثريت قومي گروپ په توگه د نني افغانستان په ۶۵۱,۶۴۹ مربع کيلومتره پراخوالي کې [7] آباد دي. په نتيجه کې ويلای شو چې، يوازې له امو نه تر اټک پورې آباد پښتون نفوس د سيمې د ټولو آبادو مهمو قومي- ژبنيو گروپونو په منځ کې د شمار له مخې لومړی قومي گروپ دی. خو، دسيمې د ټولو نه د يوه غټ قومي گروپ په توگه بيا هم د پښتانه نشنليزم خام پخلي پښتانه دوه- درې ټوټې او بيا دې ويش داپخلي نور هم خام ساتلی. خو:

لدې ويش سره سره، خپل د نني شته ډاينميزم او په افغانستان کې د قومونو په بنسټ ولاړ فدراليزم، دواړه، کيدای شي پښتون نشنليزم له خپل نني "باالقوه - منقبض" حالت نه، د شمال او جنوب په خپلو دوارو برخو کې، "آزاد" او "باالفعل" سياسي رول ولوبوي.

## ب: په شمال کې

## د ترکي نژاد په بنسټ:

### ۱,۲. د ازبک نفوس په بنسټ:

ازبک په مرکزي آسيا کې پياوړی نژادي او باالفعل سياسي قوت دی." لوی ازبکستان" " لوی ترکستان"او"پان ترکيزم" ټول د شپاړسمې پيړۍ د شيباني امپراطورۍ په پولو د ازبک نشنليزم د ترکي نژاد غوښتنې د لنډې او اوږدې مودی غوښتنې دي.

د سيمې ټول يوويشت نيم مليونه ۲۱,۴۵۰,۰۰۰ ازبک چې ۷۷ په سلو کې په ازبکستان کې آباد دي، د شمار له مخې د سيمې څلورم قومي گروپ دی.

افغان ازبک د فدراليزم د يوه مؤسس غوښتونکي په توگه په افغانستان کې د نفوسو په سلو کې ۶,۱، خو په ازبکستان کې ۷۱,۵ نفوس جوړوي. په بله ژبه، د افغانستان او ازبکستان ازبک په ترتيب سره د سيمې د ټولو ازبکو ۸,۵ او۷۷ او د مرکزي آسيا نور

ازبك د سيمې د ټولو ازبکو په سلو کې۱۴,۵ نفوس جوړوي. ويلای شو افغان ازبك د شمار له مخې دازبکستان له ازبکو وروسته د سيمې د ازبکو دويم بشري قوت دی.

په سلو کې يوازې ۱۳ افغان ازبك چې د سمنګان اوبلخ په ولايتونو کې د اوسيدونکو په سلو کې يوازې ۱۶ نفوس جوړوي، له ازبکستان او په سلو کې پاتې ۸۷ افغان ازبك له تاجکستان او ترکمنستان سره په ګډه پوله له نورو افغان قومي ګروپونو سره ګډوډ پراته دي.

## په ازبک ميشتو سيمو کې د قومونو ويش[8] :

د ۲۲,۲۷۳ مربع کيلومتره پراخوالی [9] په درلودلو سره، اصلي ازبك ميشته سيمه د فارياب ولايت دي چې، نيمايي اوسيدونکي يې په خټه ازبك دي. ټولی ازبك ميشته سيمې او په هغوی کې د قومونو ويش په لاندی ډول دی ( لومړی نومره چارټ):

۱- فارياب :

| | | |
|---|---|---|
| ازبك | ۵۲,۲۷ | په سلو کې |
| پښتانه | ۲۷,۵۹ | " |
| ترکمن | ۱۴,۲۸ | " |

۲- بلخ :

| | | |
|---|---|---|
| پښتان | ۵۳ | په سلو کې |
| ازبك | ۲۶,۴۲ | " |
| هزاره | ۶,۹۱ | " |
| ترکمن | ۶,۱۸ | " |
| تاجك | ۴,۹۳ | " |

۳- جوزجان :

| | | |
|---|---|---|
| ترکمن | ۳۴,۴۱ | " |
| ازبك | ۲۵ | " |
| پښتانه | ۱۶ | " |
| هزاره | ۱۲,۲۳ | " |
| تاجك | ۸ | " |

۴- سمنګان :

| | | |
|---|---|---|
| ازبك | ۲۵ | " |
| هزاره | ۴۰,۳۷ | " |
| پښتانه | ۱۸ | " |
| تاجك | ۱۱ | " |
| ترکمن | ۳ | " |

۵- تخار :

| | | |
|---|---|---|
| تاجك | ۵۵ په سلو کې | |
| ازبك | ۲۲ | " |
| پښتانه | ۱۵ | " |
| ترکمن | ۲ | " |
| هزاره | ۱ | " |

۶- کندز :

| | | |
|---|---|---|
| پښتانه | ۶۹ | " |
| ازبك | ۱۳ | " |
| تاجك | ۶ | " |
| ترکمن | ۴ | " |
| هزاره | ۱,۶ | " |

۷- بدخشان :

| | | |
|---|---|---|
| تاجك | ۸۳ | " |
| ازبك | ۱۰ | " |
| پښتانه | ۶ | " |

۸- بغلان :

| | | |
|---|---|---|
| پښتانه | ۴۱ | " |
| تاجك | ۳۶,۷ | " |
| هزاره | ۱۵ | " |
| ازبك | ۶ | " |

۹- بادغیس :

| | | |
|---|---|---|
| پښتانه | ۵۶,۲۱ | " |
| تاجك | ۱۲ | " |
| هزاره | ۴,۳۶ | " |
| ازبك | ۰۲ | " |
| ترکمن | ۳,۸۳ | " |

لیدل کیږي، چې ازبك په پورتنیو شمال ختیزو نهو ولایتونو کې له نورو قومي گروپونو سره گډ پراته دي. په سلو کې د ۵۲ ازبکو په درلودلو اصلي ازبك میشته سیمه فاریاب او په سلو کې د ۲ ازبکو په لرلو بادغیس د شمار له مخې نهمه او یا وروستی ازبك میشته سیمه ده. ازبك په یوازې ځان د بادغیس، بغلان، بدخشان، او کندز په ولایتونو کې بیخي ځیرمه بیز، د سمنگان، جوزجان، بلخ اوتخار ولایتونو کې د اوسیدونکو څلورمه او دفاریاب په ولایت کې د اوسیدونکو نیمايي نفوس جوړوي.

د افغانستان نږدې ټول ازبك په یوازې ځان د پورتنیو نهو ولایتونو د ټول ۱۸۲,۵۰۵ مربع کیلومتره[۱۰] پراخوالی د اوسیدونکو په سلو کې یوازې او یوازې ۵,۸۹ نفوس جوړوي. ویلای شو افغان ازبك د خپل کم نفوس له مخې د مرکزي آسیا له ازبکو سره یوځای په لوی ازبکستان، لوی ترکستان او پان ترکیزم کې د خپل ادغام او د افغانستان د ټوټه کولو په بیه له فدرالیزم نه ګټه اخستلای شي او بس.

## ۲,۳ . د ترکمن نفوس په بنسټ:

اصلي ترکمن میشته سیمې په افغانستان کې، د جوزجان او فاریاب ولایتونه دي. ترکمن پدې ولایتونو کې په ترتیب سره د اوسیدونکو په سلوکې۳۴ او۱۴ او دشمال او شمال لویدیز په نورو ولایتونو کې ځیر مه یېز نفوس جوړوي. ترکمن په شمال ختیز کې له تخار نه نیولې په لویدیز کې تر هرات پورې په پرتو اتو ولایتونو کې په عمومي ډول د اوسیدونکو په سلو کې یوازې ۲.۵۸ ( نږدې ټول ترکمن) نفوس جوړوي. په اتو ترکمن میشتو ولایتونو کې د ترکمنو او نورو قومونو فیصدي په لومړي نومره چارټ کې لیدل کیږي. ګورو چې ترکمن په یوازې ځان د قومونو په بنسټ ولاړ فدرالیزم کې د خپل ډیر لږ شمار له مخې رول نشي لوبولای.

## ۳,۴. د ازبک – ترکمن نفوس په بنسټ:

ازبك او ترکمن ،دواړه، په ګډه له بدخشان نه نیولې تر هرات پورې په پرتو نهو ولایتونو کې ( د افغانستان نږدې ټول ازبك او ترکمن) په سلو کې ټول ۸,۴۸ نفوس جوړوي. دا دواړه افغان اقلیتونه په ګډه هم د قومونو په بنسټ په ولاړ فدرالیزم کې دخپل لږ شمار له مخې د فدرالیزم پېټی نشي وړلای.

## ۵. د هزاره نفوس په بنسټ:

هزاره ګان په غټو افغان قومي اقلیتونو کې یوازینې اقلیت دی چې، دوینې په بنسټ د پاکستاني بلوچستان له هزاره ګانو سره له عزیز ګلوی پرته.، بله کومه نړیواله نږدې خپلوي نلري. خو، په مذهبي بنسټ شیعه دولس امامي هزاره ګان له ایران سره نږدې سیاسي روابط او په غټه کې دسیمې له ازبکو سره مغلي شریکه وینه لري. په دی برسیره، هزاره ګان د سیمې د تاجکو، ازبکو، ترکمنو، او پښتنو په خلاف، په افغانستان کې په یوه محدود او کلابند جغرافیایي موقعیت کې پراته دي. هزاره ګانو په عمومي ډول له ۱۹۷۸ او په ځانګړي ډول له ۱۹۹۲ نه وروسته، ډیر کوښښ وکړ چې، په مرکزي افغانستان، شمال او کابل کې خپل پوځي- قومي سره لیرې پراته مرکزونه په جغرافیایي لحاظ هم ونښلوي. خو، تاجکو او پښتنو دا لار ډپ کړه. پدې برسیره، هزاره ګان له اتیا یمې لسیزې راپدې خوا، له خپل مذهبي سیاسي ملاتړ ایران سره د جغرافیایي اړخ د لګولو او له اوسني سیاسي جغرافیایي کلابندۍ نه دځان د ایستلو لپاره د لویدیز افغانستان په کوم مناسب ځای، مثلاً فراه،کې د ځمکني ملکیت د ترلاسه کولو په هڅه کې هم یاتې راغلل. دهزاره ګانو دا لار هم

په لویدیز افغانستان کې د اباد پښتانه- تاجك جغرافیایي، قومي، مذهبي او سیاسي خنډ نیولې ده.

**په اصلي هزاره میشتو سیمو کې د قومونو ویش**[11] (دویم نومره چارټ):

۱. بامیان ✳
هزاره ګان ۱۰۰ په سلو کې

۲. ارزګان:
پښتانه ۵۲,۵۲ په سلو کې
هزاره ۴۷,۴۸ په سلو کې

۳. غزني:
پښتانه ۵۳,۱۳ په سلو کې
هزاره ۴۴,۵۶ په سلو کې

۴- وردګ:
پښتانه ۵۷,۳۶ په سلو کې
هزاره ۳۹,۹۴ په سلو کې

۵- پروان:
پښتانه ۴۳,۳۳ په سلو کې
تاجك ۴۰,۴۸ په سلو کې
هزاره ۱۵,۶۵ په سلو کې

۶- کابل:
پښتانه ۶۹,۵ په سلو کې
تاجك ۱۹ په سلو کې
هزاره ۴ په سلو کې

۷- لوګر:
پښتانه ۸۵,۳۳ په سلو کې
تاجك ۱۳,۱۳ په سلو کې
هزاره ۱,۵ په سلو کې

۸- غور:
پښتانه ۴۰,۸۵ په سلو کې
تاجك ۷,۵۲ په سلو کې
ایماق ۴۲,۵۶ په سلو کې
هزاره ۴ په سلو کې

✳ په بامیانو کې یو شمیر اباد تاجك، سادات او پښتون نفوس چې دقیق شمار یې لا زمونږ په لاس کې نشته او له هزاره ګانو نه زیات دي، پدې خبرنه کې په نظر کې نه دي نیول شوی.

لیدل کیږي چې اصلي هزاره میشته سیمې په ترتیب سره د بامیــان، ارزګان، غزني، وردګ ( دویم نومره چارټ) او سمنګان (لومړی نومره چارټ) ولایتونـه دي. خو هزاره ګان پرته له بامیان څخه ددې سیمو د اوسیدونکو له نیمایي نه هم لږ نفوس جوړوي. دا هزاره ګان د افغانستان د ټولو هزاره ګانو لـه دریو نـه دوه برخی (۶,۶ )کیږي. دویمه درجه هزاره میشتې سیمې د بغلان، جوزجان، بلخ (لومړی نومره چارټ) او پروان (دویمه نومره چارټ) ولایتونه دي. چې د ټولو هزاره ګانو شپږمه برخه (۱,۵۷) او ددې سیمو د ټولو اوسیدونکو په سلو کې ۱۲ نفوس جوړوي. په پاتې پورتنیو سیمو کې لیدل کیږي چې هزاره ګان بیخي ډیرمه ییز نفوس لري.

ویلای شو چې د افغانستان په ټول نفوس کې په سلو کې پورتني ټول ۸ هزاره ګان د افغانستان په ۱۵۳,۹۷۴ مربع کیلومتره پراخوالي کې د بامیان په ګډون له نورو افغاني قومونو سره ګډوډ پراته دي. لکه څنګه چې په جنوب کې لوګر لـه بامیـان سره په مرکز او سمنګان او بلخ سره په شمال کې نبنلول د شمار لـه مخې په خپـل کمزوري نفوس د هزاره ګانو لپاره ناشونی کار دی د مرکزي او شمالي افغانستان نبنلول هم د کیدو نه دی.

## ۱,٦ په ګډه د ترکي نژاد + هزاره نفوس په بنسټ:

دیوه ګډ درې ګوني قومي ائتلاف په توګه، که په سلو کې لـه ټولو ۶,۱ ازبکو ټولو ۲,۶۹ ترکمنو او ټولو نهو هزاره ګانو سره په شمال+ لویدیز زون کې په سلو کې ۰,۹۵ کوچني افغان اقلیتونه او په سلو کې ټول ۲,۶۸ ایماق هم په نظر کې ونیـول شـي، په ګډه یو (۲۱%) ائتلافي نفوس جوړوي. خو، د پورتنی سیمې په سلو کې۱۳ پښتانـه او ۷ تـاجک ( ټول ټال%۲۰ ) د فدرالیزم د جوړیدو امکانات په پښنو وهلای شي.

## ۷. د تاجک نفوس په بنسټ:

تاجك، د شمېر له مخې، د مرکزي اسیا یو کمزوری او کوچنـی ټوټه شـوی قومي ـ ژبنـی ګروپ دی. پـه بلشـویکي دوره کـې لـه ۱۹۱۷ نـه وروسـته لـه ازبکسـتان سـره د تاجکستان، د تاجك میشته سمرقند او بخارا د سیمو نبنلولو لـه یوې خوا، په۲۶-۱۹۱۸ کلونو کې افغانستان ته د مرکزي اسیاله فرغانی نه د ۵ لکو تاجکو او ازبکو راواوښتلو او دلته پاتې کیدو[۱۲] او په مرکزي اسیا کې په عمومي ډول د پان ترکیزم اوترکي نژاد پالنې پیاوړو تمایلاتو، تاجك په ټوله سیمه کې خپاره کړل. سمرقند اوبخارا لږ تر لږه د یوه میلیون تاجك نفوس په درلودلو سره په مرکزي اسیا کې د ازبکو او تاجکو ترمنځ متنازع فیه ځمکې دي.

نن سبا د افغانستان په ګډون په مرکزي آسیا کې څه نا څه نه میلیونه تـاجك آباد دي. په افغانستان او تاجکستان، دواړو، کې نژدې مساوي شمیر تاجك اوسیږي. د سیمې د ټولو تاجکو په سلو کې۴۱ په تاجکستان او پاتې د افغانستان په ګډون د مرکزي اسیا په نورو هیوادونو کې میشت دي:

د شمار له مخې افغانستان د تاجکو لومړی، تاجکستان دویمه، ازبکستان دریمه او ترکمنستان څلورمه تاجك میشته سیاسي جغرافیه ده. په سلو کې د افغانستان د ټولو ۱۲ تاجکو له نیمایي نه څه زیات (۷) تاجك د هندوکش شمال ته له تاجکستان سره په لیرې او نژدې ګاونډ کې، په شمال ختیز کې له بدخشان نه نیولي په لویدیز کې تر فراه پورې خپاره دي. په سلو کې پاتې ۵ تاجك هم د هندوکش په جنوبي لمنو کې له نورو افغاني قومي ګروپونو سره ګډ د تاجکستان له پولو نه لیرې آباد دي.

له تاجکستان سره په ګاونډ، بدخشان، تخار، کندز او بغلان کې په سلو کې یوازې ۵ تاجك آباد دي چې ددې ولایتونو د اوسیدونکو له نیمایي نه هم څه لږ (۴۵ په سلو کې) نفوس جوړوي. د شمار له مخې د همدغه یوه کمزوري نفوس په درلودلو یوازې پورتنې درې ولایتونه په خپل ۷۶,۹۰۲ مربع کیلومتره پراخوالي [۱۳]، چې د افغانستان د ټول پراخوالي په سلو کې ۱۲ کیږي، د افغان تاجکو لپاره باالفعل تاجك میشته سیمې دي. خو، په کندز کې په سلو کې د ۶۹ پښتانه نفوس په پرتله تاجك په سلو کې د ۶ نفوس په درلودلو د تاوان په کور کې دي. په کندز کې تاجك اکثریت نن سبا تاجکو ته غټه فدرالي ګټه اړولای شوه. *

په سیمه ییز کچ، په افغانستان کې د فدرالیزم او د دې فدرالیزم دعواقبو په اړه له تاجکستان سره په ګاونډ کې په سلو کې پراته ۵ افغان تاجك (۹۸۱,۰۰۰ نفوس) د تاجکستان د ټولو ۳,۶۹۰,۰۰۰ تاجکو سره په ګډه د ۴,۶۷۱,۰۰۰ تاجك نفوس په جوړولو د ازبکو په پرتله ډیر کمزوری سیمه ییز نفوس دی. په عمومي ډول، د مرکزي اسیا په کچ، دسیمې ټول نژدې نه میلیونه تاجك د سیمې د ټولو یوویشت نیم میلیونو ازبکو له نیمایي نه هم لږ (۴۱٪) دي. پدې برسیره، پخپله د تاجکستان د ټول نفوس په سلو کې ۲۳ ازبك د قومي عدم تجانس د یوې باالفعل ستونزې په توګه د سیمې تاجك د غټ سیاسي تاوان سره مخ کړي دي. همدلته ده چې تاجك د سیمه ییزو قومي ګروپونو، مثلاً پښتنو او ازبکو، په یوه وړونکي بشري جغرافیایي چاپیریال کې د خپل بایلونکي موقف له کبله په افغانستان کې له فدرالیزم نه ګټه نه شي اخستلای. هم د" ازبك- هزاره" ګډ نفوس او هم د ازبکو او هزاره ګانو د بېل بېل نفوس په بنسټ په ولاړ فدرالیزم کې تاجك د شمار له مخې د خپل کمزوري نفوس په درلودلو په تاوان کې دي. په پای کې ویلای شو چې، تاجك د خپل سیمه ییز کمزوري قومي ملاتړ له مخې په افغانستان کې له فدرالیزم سره جوړ نه شي راتلای.

## ۸. د ټول اقلیتي نفوس په بنسټ:

د ازبکو او هزاره ګانو په طرحه شوي فدرالیزم کې که د شمال+ لویدیز او مرکزي زون ټول غټ او واړه کوچني قومي اقلیتونه هم په نظر کې نیول شوي وي، د قومي ګروپونو شته ترکیب د فدرالیزم د جوړیدو توان په پښو وهي:

* ددغو څلورو ولایتونو د قومونو ویش په لومړي نومره چارټ کې وګورئ.

◆ په سلو کې د افغانستان ټول ۶,۱ ازبک، ټول ۲,۶۹ ترکمن، د شمال ۱,۹۹ د مرکزي افغانستان ۳,۱۷ او د جنوب ۳,۸۴ او یا دافغانستان ټول هزاره ګان، ټول ۲,۶۸ ایماق، د شمال په سلو کې ۷ تاجك او ددې سیمې په سلو کې ۰,۹۵ نور کوچني قومي اقلیتونه په ګډه د هېواد په سلو کې ۲۸ نفوس جوړوي. د بېلو بېلو قومونو د تراکم په دغسې یوه قومي – سیاسي جغرافیه کې دفدرالیزم یوازې غټې غټې ستونزې پدې ډول ګڼلای شو:

۱- د شمال په سلو کې ۷ تاجك په ځانګړي او د هېواد په سلو کې ۱۲ تاجك په عام ډول د ازبك - هزاره په قومي بنسټ د ولاړ فدرالیزم په نژادي – سیاسي جغرافیه کې د ځائیدو نه دي.

۲- د پورتني قومي تراکم په دغسې یوه قومي جغرافیه کې د نوموړو سیمو نژدې پنځه میلیونه پښتانه، چې د هېواد په سلو کې ۱۵,۵ نفوس جوړوي، هم د ازبکو او هزاره ګانو په قومي بنسټ ولاړه فدرالي سیاسي جغرافیه کې نشي ځائیدای.

۳- په دې برسیره، یوازې نژدې درې نیم میلیونه په قاطع اکثریت پښتانه کوچیان چې، شمال او مرکزي افغانستان یې د کال د دوو فصلونو کور دی، د فدرالیزم د پاملرنې وړ باالفعل مخالف نژادي- سیاسي قوت دی.

په لنډ ډول ویلای شو چې:

۴- پرته له تاجکو، د ټول افغانستان د ټول اقلیتي ۲۱٪ قومي ائتلاف په بنسټ ولاړ فدرالیزم یوازې د شمال+ لویدیزاو مرکزي زون د ۱۵,۵٪ پښتانه نفوس، د همدې سیمې د ۲۳٪ پښتانه- تاجك قومي- سیاسي ائتلاف، یوازې د ټول افغانستان د ۶۳٪ پښتانه او په ګډه د ټول افغانستان د ۷۵٪ پښتانه- تاجك قومي- سیاسي ائتلاف د مخالفت له مخې نشي جوړیدای.

۵- د تاجکو په ګډون به د ټول افغانستان د ۳۳٪ قومي ائتلاف په بنسټ ولاړ فدرالیزم د افغانستان د ټولو ۶۳٪ پښتنو د مخالفت سره مخ وي:

۶- پدې صورت کې به د شمال ۱۳٪ پښتانه، د پښتنو په تاوان، د ټول ۳۳٪ اقلیتي قومي ائتلاف د مخالفت او د هندوکش دجنوب پاتی ۵٪ تاجك به، دتاجکو په تاوان، د ټول هېواد د پښتنو د مخالفت سره لاس او ګریوان وي.

۷- نژدی درې نیم میلیونه په مطلق اکثریت پښتانه او څه بلوچ کوچیان به ( د پښتنو په ملاتړ) د خپلو شمالي او مرکزي ایلبندونو د ساتلو او یا ترلاسه کولو په خونړیو جګړو بوخت وي.

۸- د دې فدرالیزم دعواقبو په توګه، له شمال نه جنوب او یا له جنوب نه شمال ته بې ځایه کیدنی او بیا میشتیدنې احتمالي؛ خو، د خپلو ځمکنیو ملکیتونو د ساتلو خبره حتمي ښکاري.

۹- شمال+ لویدیزاو مرکزي افغانستان، د فدرالیزم د طراحانو په اصطلاح، د فدرالیزم اصلي جغرافیه، د افغانستان څه ناڅه نیمایي ۳۷۶,۴۰۹ مربع کیلومتره پراخوالی [۱۴]، د یوه نګه قومي جوړښت د نه درلودلو له مخې د داسې یوه نظام د جوړیدو توان نلري.

## اخځونه

1- *Herald* Magazin, December, 1997, Islamabad.
2-1981 Census
*Pakistan* . December 1984, Population Census Organization, Statistics Division, Government of Pakistan, Islamabad. p.7, Table 2:2 -- Area , Population , and Density by Province: 1981.

۳- وګورئ میرغلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، ۵۸۱-۵۷۸ مخونه، ۱۹۶۷ کال، کابل.

4- Story of Pakistan, A Mutimedia CD, Jin Technologies, 1999..

۵ – د واك فونډیشن لپاره زما خپله څیړنه (موءلف) ۲۰۰۰-۱۹۹۹ کلونه.

۶ – دا عدد د ټولې شمال لویدیزې سرحدي صوبې (NWFP)، Frontier Regions, FATA ، د پنجاب د اټك او میانوالی د ولسوالیو، د بلوچستان د کویټې، پشین، لورلایې، ژوب، او چاګۍ د ولسوالیو د پراخوالي له مجموعې نه لاس ته راغلی چې د پښتنو د ځمکې ټول پراخوالی نشي ښودلای (موءلف).

۷- واك فونډیشن د افغانستان لپاره، د افغانستان قومي جوړښت، لومړۍ ضمیمه، د ولسوالیو په کچ په هبواد کې د قومونو د ویش جدول، ۹۹مخ د ساپي د پښتو څیړنو او پراختیا د مرکز چاپ، ۱۹۹۸ کال پېښور.

8 – Wak Foundation For Afghanistan ( WFA ), "*The Ethnic Composition of Afghanistan*". Province Level Ethnicity Distribution, p.45, KOR,1999, Peshawar.

۹ – واك فونډیشن دافغانستان لپاره، د افغانستان قومي جوړښت، لومړۍ ضمیمه، پورتنی اخځ ۱۸ مخ.

۱۰- پورتنی آخځ ۱-۹۹ مخونه.

۱۱- وګورئ آتم اخځ.

۱۲- محمدحسن کاکړ، رښا او دفاع، د محمدحسن سهاك مقاله: بحثی پیرامون نفوس کشور، ۲۸ مخ، د ساپي د پښتو څیړنو او پراختیا د مرکز چاپ، ۱۹۹۹ کال، پېښور.

۱۳- وګورئ لسم اخځ.

۱۴- = = .

خلورمه برخه:

# لنډیز

## د فدرالیزم افغاني خنډونه:

- په شمال کې آباد پښتون نفوس د قومونو په بنسټ د ولاړ فدرالیزم یو باالفعل بشري- سیاسي مخالف قوت دی:
- د شمال حوزې، په تیره بیا د بلخ او د شمال ختیزې حوزې، په تیره بیا دکندز اباد پښتانه په دوو محورونو کې په ځانګړي ډول د فدرالیزم او په عمومي ډول د افغانستان د ټوټه کولو مخه نیولې ده.
- په افغانستان کې له فدرالیزم سره د تاجکو د مخالفت ترشا په سیمه ییز کچ د شمار له مخې د دوی کمزوری او د پښتنو د ورته مخالفت ترشا د شمار له مخې په ملي کچ د دوی د پیاوړي نفوس منطق پروت دی. خو، د شمار له مخې پیاوړی سیمه ییز پښتون نفوس له فدرالیزم نه پورته سیمه ییز اهداف هم خپلولی شي.
- د شمار له مخې د کمزوري تاجك نفوس سره سره، په شمال کې پښتون- تاجك قومي ائتلاف یو د بل ملا، خو، د فدرالیزم متې ترلای شي.
- د شمال اباد پښتون نفوس نه یوازې د یوه موټي افغانستان، بلکې د روسیې د فدراسیون Russian Federation لپاره هم "آب حیات" دی:
- د افغانستان د شمال + لویدیز زون افغان پښتون نفوس چې د هغې سیمې په سلو کې څلویښت، د افغان پښتانه په سلو کې۱۳ او دسیمې د ټولو پښتنو په سلو کې ۸ نفوس جوړوي، مرکزي آسیا په باالفعل ډول له نژادي پراختیا غوښتنې او په باالقوه ډول د اسلامي سخت دریځۍ او بنسټپالنې له لاس اچونو نه بچ ساتلای شي.
- نژدې درې نیم میلیونه په قاطع اکثریت پښتانه کوچیان، چې شمال او مرکزي افغانستان یې د دوبي او جنوب یې د ژمي کور دی، پخپله د فدرالیزم یو پیاوړی مخالف دی.
- افغان ملي اقتصاد او طبیعي جغرافیه هم پخپل وار د افغانستان د قومي جوړښت په څېر دفدرالیزم سره وران دي.

## د فدرالیزم غیر افغاني خنډونه:

- افغان پښتون او افغان نشنلیزم دواړه د خپل ملي رسالت او " پاکستاني نشنلیزم" د خپل خام پخلي په بنسټ پخپل وار په افغانستان کې د فدرالیزم مخالف دي:
- سره لدې چې ډیورنډ لاین، د دواړو، افغان او پښتانه نشنلیزم د پخلي بهیر ډپ کړی؛ خو، بیا هم په ټول پاکستاني نفوس کې د لومړی اکثریت قومي ګروپ په توګه

د ډیورنډ لاین د جنوب دیرش میلیونه پښتون نفوس د "پاکستاني نشنلیزم" په بتۍ کې لاهم لواړ او خام پروت دی؛ نو.

- نشي کیدای د ډیورنډ لاین د جنوب پښتون نشنلیزم دې د افغانستان له فدرالیزم سره وران وي.

## د فدرالیزم سیمه ییزې لاس اچونې:

- افغان تاریخ، افغان جغرافیه، افغان اقتصاد او یو په بل کې ننوتې افغان قومي جوړښت، یو هم په افغانستان کې له فدرالیزم سره اړخ نشي لګولای؛ خو:
- که فدرالیزم له بل کوم لوري په افغانانو تپل کیږي، نو ددې فدرالیزم د عواقبو په توګه به، له بل هر سیاسي اقتصادي عامل نه مخکې تر مخکې، د یوه سیمه ییز قومي واقعیت په بنسټ په شمال کې ازبك او د اسلامي سخت دریځې د سیاسي- کلتوري برلاسۍ نه د خلاصون په صورت کې، په جنوب کې پښتون نشنلیزم، په سیمه کې د نویو او یا زړو پولو تیره بیا ړدي:
- له ټولو نه مهم ټکی دادی چې، په افغانستان کې د قومونو په بنسټ د ولاړ فدرالیزم عواقب د نني افغانستان له سیاسي جغرافیې سره، په ملي کچ دومره نه، بلکې د افغانستان د نولسمې پیړۍ د سیاسي جغرافیې له پولو سره، زیات په سیمه ییز کچ، سروکار لري؛
- او په طبیعي جغرافیې باندې د سیاسي جغرافیې د دې بیا لګونې په بیخ او بنسټ کې د افغان، پښتانه نشنلیزم سیاسي او کلتوري تیرې اینبې دي؛ خو:
- ددې سخت دریځې د سیاسي- کلتوري برلاسۍ لاندې په پاتې کېدو سره به، په پاکستان کې د پښتنو درې سیاسي جغرافیې: فاټا FATA، سرحدي حوزې Frontier Regions او بشپړې اېل شوې سیمې Settled Areas، په یوه نه یوه بڼه، د پاکستاني نشنلیزم په بتۍ کې د خپلې ویلې کېدنې نوو پړاوونو ته ورننوځي:

د ډیورنډ لاین په جنوب کې:

- سرحدي حوزې Frontier Regions به د ویلې کېدو د بشپړو اېل شوو سیمو Settled Areas او فاټا FATA به د Frontier Regions مرحلې ته ننوځي؛

د ډیورنډ لاین په شمال کې:

- ډیورنډ لاین ته نږدې پروت شمالي کمربند به، په یوه نه یوه ډول، د Frontier Regions، د ډیورنډ لاین شمال ته لیرې پرتې سیمې به ان د هندوکش تر جنوبي لمنو پورې، په یوه نه یوه ډول، د فاټا FATA بڼه نیسي؛ خو:
- د خاموالي په لور د افغاني او د پوخوالي په لور د پاکستاني نشنلیزم ژوره خیړنه کولای شي، د فدرالیزم د عواقبو په توګه، د مرکزي او جنوبي آسیا د سیاسي جغرافیو د پولو د ورانولو او جوړولو کره کچ او میچ را په ګوته کړي.

پنځمه برخه:

# سپارښتني

- په کار ده، غټ او کوچني فدرال غوښتونکي قومي اقلیتونه، فدرالیزم نه یوازې د یوه غیر افغاني، بلکې هغه د یوموټي افغانستان د ټوټه کولو مترادف نظام و پیژني.
- د افغان په ځای ځان پښتون، ځان تاجك، ځان هزاره، ځان ازبك او ترکمن ګڼل سراسر ملي تاوان دی. پښتانه، په کار ده، د اکثریت قومي ګروپ په توګه ګام اوچت او د ټولو شونو لارو چارو په خپلولو غټ او واړه قومي اقلیتونه په یوه نغري یو ځل بیا را ټول کړي.
- د تیرو اتو کلنو ژوندیو تجربو په رڼا کې، د یوه ملي ضرورت له مخې، په کار ده اقلیتونه له نژادي او اکثریت د اسلامي سخت دریځۍ له پنجو نه ځان وژغوري؛ یوازې افغاني لارې د هېواد تاریخ، جغرافیه او ملي حیثیت خوندي ساتلی شي او بس.
- د ټولو غټو او وړو افغاني قومي ګروپونو ملي وقار یوازې او یوازې د یوه ګډ کور په توګه د یوه موټي افغانستان په لوی کور کې خوندي کیدای شي، نه د فدرالیزم په کوچنیو کورګیو کې.
- د هېواد د اکثریت قومي ګروپ په توګه، د اسلامي سخت دریځۍ او بنسټپالنې له پنجونه، په کار ده پښتانه او د لومړي اقلیت په توګه له نژادي تمایلاتونه د ځان په ژغورلو، پکار ده تاجك، د یوه موټي افغانستان د جوړولو په کار کې په ګډه خپل ملي رسالت په ځای او په غوځ ډول له فدرالیزم او خود مختارۍ نه نیولې تر بېلتانه پورې د غیر افغاني غوښتنو عوامل له بېخ او بنسټه وباسي.
- د یوه لاس د پنځو ګوتو په توګه، پکار ده ټول غیر پښتانه غټ افغان اقلیتونه د "ملي احساس" او پښتانه د " ملي مسئولیت" په درك سره راټول او یوموټی شي؛ "افغانستان" د خپل هېواد او " افغانیت" د خپل ملي هویت په توګه په رسمیت وپیژني.






## د فدرالیزم سیاسي بنسټ:

فدرالیزم او تړنه کېدنه په افغانستان کې دوه مترادف غیر افغاني واقعیتونه دي. فدرالیزم په افغانستان کې په هیڅ ډول له تړنه کولو نه ښکته اهداف نشي لاسته کولای. د فدرالیزم انګیزه د افغانستان د شمال سکتاریزم، د لویدیز د پراختیا غوښتونکي مذهبي فاشیزم او په دوی پورې د تړلو افغاني قومي- مذهبي ګروپونو دنژادي- مذهبي غوښتنو یوه نا مشروع طرحه ده. که فدرالیزم په افغانستان کې دقومي اقلیتونو دسیاسي او کلتوري غوښتنو خبره وي، نو، دوی په افغانستان کې د دموکراسۍ نه وړاندې او راوروسته د یوې متناسبې نمایندګۍ نه هم زیات څه درلودل:

له دموکراسۍ نه پخوا تاجکو ته چې د هېواد د نفوسو په سلو کې دولس جوړوي [٣]، په سلو کې ٢٩.٢ غټ دولتي پوستونه [٤]، پښتنو ته چې په سلو کې د افغان نفوس ٦٣ جوړوي [٥]، ٥١.٩ [٦]، ساداتو ته چې په افغان نفوس کې یو فیصد هم نشي جوړولای [٧] په سلو کې ٦.۴ [٨]، نوروسني قومونو ته په سلو کې ۴.۵ [٩] او اهل تشیع ته په سلو کې ١.٨ [١٠] دا ډول دولتي پوستونه رسیدلي وو. د دیموکراسۍ په دوره کې (١٩۶۴-٧٣) پښتنو ته سلو کې ۵۶.١، تاجکو ته ٣٣، ساداتو ته ٣.٣، نورو سني قومونو ته ۵.۵ او اهل تشیع ته په سلو کې ٢.٢ غټ دولتي پوستونه ورکړل شوي وو [١١].

په کلتوري لحاظ، یوازې فارسي ژبه په واقعیت کې د دولت رسمي ژبه وه نه پښتو د پښتانه اکثریت په ګډون اقلیتونه مجبور وو د خپلو رسمي او غیر رسمي چارو د سمون لپاره دا ژبه زده کړي.

ښکاره ده چې د کوچنیو اقلیتونو په ګډون د هزاره او پښتنو سیاسي او کلتوري حقوق تاجکو او ساداتو اخستي وو په کار ده، دوی د خپلو حقه حقوقو د خوندي کولو لپاره په مشروع او سوله ییزه توګه مبارزه وکړي.

د یادونې وړ ده چې، د خلق- پرچم د حکومت په دوره (٩٢ -١٩٧٨) کې دقومي اقلیتونو دا ډول غوښتنې هم پوره شوې. هزاره ګانو په دې دوره کې ان ترصدارت پورې دولتي پوستونه خپل کړي وو. دوی ته د" اقوام وقبایل" ، "اقلیتونو" او "ملیتونو" په نوم خپلواک سازمانونه او وزارتونه هم جوړ شول. په ٩٧ -١٩٩٢ دوره کې تاجکو د جمهوري ریاست او صدارت نه نیولې تر مهمو وزارتونو پورې ټول دولتي غټ پوستونه خپل کړل؛ ازبک او هزاره له دوی نه هم وړاندې لاړل.

نو، د زیات شمېر بهرنیو عواملو په څنګ کې د لویدیز مذهبي او د شمال پراختیا غوښتونکي سکتاریزم له یوې خوا ، او د کورنیو عواملو په توګه په افغانستان کې د ملي ایډیالوژۍ کمزوري تعمیم، د ملي ټولنې د جوړیدو خام پخلي، د اکثریت د ملي مسئولیت اود اقلیتونو د ملي احساس کمزوري، د کمونیستي ایډیالوژۍ او دین په بنسټ د "دولت" او "ټولنې" د جوړولو عمل او د اسلامي او کمونیستي دواړو سخت دریځیو له خوا قومي اقلیتونو ته غیر طبیعي او غیر افغاني وده ورکول له بلې خوا؛ ټول او ټول د یوه موتې

افغانستان د ټوټه کونې د بنسټیز ګام په توګه د فدرالیزم محرکه قوه او انګیزه ګڼلای شو.

## د فدرالیزم جغرافیایي بنسټ:

لکه څنګه چې هندوکش، بابا غره، سفید کوه، سپین غره او د غرونو نورو لړیو کوم ځانګړی قومي ګروپ له بله نه دي بیل کړی؛ د آمو. هریرود. هلمند- ارغنداو او د کابل د سیندونو څلورو سیستمونو هم قومي ګروپونه یو له بله نه دي بیل کړي. د غرونو دا لړۍ او د سیندونو دا څلور سیستمونه د قومي ګروپونو په منځ منځ کې ځای لري. هیڅ ډول جغرافیا یې برید افغان قومي ګروپونه سره ندي ویشلي.

## د فدرالیزم اقتصادي بنسټ:

هزاره ګان د فدرالیزم دیوه اصلي غوښتونکي او د دې طرحې د بنسټ ایښودونکي په توګه د فدرالیزم دجوړیدو هیڅ اقتصادي بنسټ نه لري. که په بدخشان کې د لاجوردو، په تخار کې د سروزرو، په پنجشېر کې دزمردو او بغلان کې د سکرو طبیعي زیرمې شته دی؛ خویا ده دې وي چې په دغه اصلي تاجك میشته شمال ختیزه حوزه کې په سلو کې د۳۳ پښتنو په ګډون د سیمې په سلو کې۵۵ اوسیدونکي غیر تاجك دي (۱۲).

د فدرالیزم د غوښتونکو په توګه، د هېواد په شمال نفت اوګاز لرونکې سیمه کې. یوازې ازبك- ترکمن د ګټې په کور کې دي. هغه هم داسې چې ازبك اوترکمن، د هېواد دشمالي اقتصادي حوزې په توګه، د سمنګان. بلخ. جوزجان او فاریاب د ولایتونو په سلو کې یوازې نیمایي، پښتانه په سلو کې ۳۰ او نور اقلیتونه ددې حوزې په سلو کې پاتی ۲۰ نفوس جوړوي (۱۳). په دې بې شماره ستونزو او خنډونو برسیره، قومي ګروپونه، په تیره بیا فدرال غوښتونکي اقلیتونه، یو هم دخپلو په نوم فدرالي ټوټو دتخنیکي او اداري چارو کار پوهان هم نلري.

## د فدرالیزم قومي بنسټ:

دفدرالیزم په وړاندې په اقتصادي او جغرافیایي شته خنډونو برسیره، چې په باالفعل ډول د فدرالیزم د جوړیدو مخه نیسي. زمونږ ددې څیړنې د اصلي تیزس په توګه، " د افغانستان قومي جوړښت"، په خپله یو بنسټیز خنډ دی. یوازې نژدې درې نیم میلیونه په قاطع اکثریت پښتانه کوچیان چې، شمال او مرکزي افغانستان یې د دوبي او جنوب یې دژمي کور دی، د فدرالیزم پیاوړی مخالف دي.

په شمال او جنوب کې له خپلو ګاونډیو سره د افغان قومي او نژادي ګروپونو شته قومي- نژادي اړیکي فدرالیزم ته یو داسې سیمه ییز کچ ورکولای شي چې، بنایي دسیمې د سیاسي جغرافیې په کړښو کې ګوتې ووهي. نو، مونږ مخکې لدې چې دفدرالیزم دجوړیدو امکانات د افغانستان دقومي جوړښت په هنداره کې وګورو؛ د افغانستان په ګډون ټول سیمه ییز قومي ګروپونه او د شمار له مخې د هغوی توان په لنډ ډول څیړو.

سیندونه:

۱. د آمو سیستم
۲. د هریرود سیستم
۳. د هلمند ارغنداو سیستم
۴. د کابل سیستم

اخځ: ل. دوپري، افغانستان ۳۲مخ، ۱۹۸۰

# اخځونه

1. Louis Dupree ` Afghanistan ` pp .156 – 157 ` 1980.

۲. محمد حسن کاکړ، رېا او دفاع، د محمد حسن سهاك مقاله: بحثي پیرامون نفوس کشور، ۵۴ مخ، ۱۹۹۹، پېښور، دساپي دپښتو څېړنو او پراختیا د مرکز چاپ.

(3`5`7) Wak Foundation For Afghanistan, *"The Ethnic Composition of Afghanistan"* , p. 27, KOR, 1999, Peshawar.

(۴،۶،۸، ۹،۱۰، ۱۱) محمدانعام واك، "افغانستان: دریم قوت"، ۳۸،۳۹ مخونه، واك فونډیشن د افغانستان لپاره،۱۹۹۹ کال، پېښور.

12. Wak Foundation for Afghanistan, "*The Ethnic Composition of Afghanistan*", op. cit., p. 37.

13. Ibid, p . 35.

## دویمه برخه:

# سیمه ییز قومي ـ ژبني ګروپونه

## (نفوس او فیصدی)

## افغانستان:

د افغانستان د نفوسو لپاره یو منلی او دقیق عدد په لاس کې نشته. د تیرو دوو پیړیو راهیسې د افغانستان نفوس په لاندې ډول ښودل شوی دی:

په ۱۸۱۸ کال ماونټ سټوورټ الفنسټن Mount Stuart Elphinston په خپل کتاب" د کابل سلطنت" کې داحمدشاهي امپراطورۍ نفوس ۱۴,۸۰۰,۰۰۰ ښودلی و [۱]. په ۱۸۹۵ کال کې د ډیورنډ لاین له تړون نه وروسته ۴۵۰۰۰۰۰ اټکل شوی و [۲]. په کال ۱۹۰۶ کې ۱۶۱۰۰۰۰۰ [۳] په ۱۹۳۰ کې ۱۲۰۰۰۰۰۰ [۴]، په ۱۹۶۲ کې ۱۵,۲۷۱,۶۸۷ [۵] او ۱۹۷۹ کال کې د حکومت دنمونه یي سرشمیرنې له مخې افغان نفوس ۱۵,۵۰۰,۰۰۰ و [۶].

د نفوسو د "دوه فیصده" کلنۍ ودې په صورت کې به د ۱۸۹۵ کال نفوس د درې برابره کیدونه وروسته [۷] اوس په دوه زرم کال کې ۳۶۱۰۰۰۱۰۰۰ وي. د ۱۹۶۲ کال نفوس به دځای په ځای شوي (ښاري – کلیوالي) او کوچي نفوس په بیلوالي تر دوه زرم کال پورې په دې ډول زیات شوی وي:

الف: د نفوسو د ۲% کلنۍ ودې په صورت کې:

| شمیر | کال | ښاري – کلیوالي نفوس | کوچیان | ټول |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | ۱۹۶۲ | ۱۲,۸۱۳,۹۴۲ | ۲,۴۵۷,۷۴۵ | ۱۵,۲۷۱,۶۸۷ |
| ۲ | ۱۹۹۷ | ۲۵,۶۲۷,۸۸۴ | ۴,۹۱۵,۴۹۰ | ۳۰,۵۴۳,۳۷۴ |
| ۳ | ۲۰۰۰ | ۲۶,۷۱۷,۰۶۹ | ۵,۱۲۴,۳۹۸ | ۳۱,۸۴۱,۴۶۷ |

ب. د نفوسو د ۲,۵% کلنۍ ودې په صورت کې:

| شمیر | کال | ښاري- کلیوالي نفوس | کوچیان | ټول |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | ۱۹۶۲ | ۱۲,۸۱۳,۹۴۲ | ۲,۴۵۷,۷۴۵ | ۱۵,۲۷۱,۶۸۷ |
| ۲ | ۱۹۹۲ | ۲۵,۶۲۷,۸۸۴ | ۴,۹۱۵,۴۹۰ | ۳۰,۵۴۳,۳۷۴ |
| ۳ | ۲۰۰۰ | ۲۸,۹۵۴,۵۰۸ | ۵,۵۵۴,۵۰۳ | ۳۴,۵۰۹,۰۱۱۰ |

په سلو کې د نفوسو د ۲.۵ او ۲,۷ کلنۍ ودې په صورت کې د ۱۹۷۹ کال افغان نفوس په دوه زرم کال کې دیرش میلیونو ته نژدې کیږي.

د نفوسو د زیاتې کلنۍ ودی د مخنیوي د څه ناڅه بریالي پروګرام سره سره، بیاهم د پاکستان د ۱۹۹۷ کال د نفوسو کلنۍ وده ۲,۷۷ وه [۸]. ښکاره ده چې په

# سریزه

د څه نا څه ورته ملي کلتور او د غټو اقتصادي بنسټونو د لرغوني ملي شراکت په څنګ کې، دجغرافیایي واقعیت په توګه، کوم ځانګړی غره یا سیند هم ددغه یا هغه ځانګړي قومي ګروپ او یا ځمکې ترمنځ کوم جغرافیایي برید نه دی جوړ کړی؛ نو په افغانستان کې په اقتصادي، جغرافیایي او کلتوري بنسټونو د فدرالیزم جوړول ناشوني کار دی.

دا شته واقعیتونه په خپله افغانانو او بهرنیو افغانستان پیژندونکو ته ښکاره دي. خو، هغه واقعیت چې روڼ نه دی؛ هغه یو په بل کې ننوتی افغاني قومي جوړښت دی. یو شمیر افغانانو لږ تر لږه له شپیتمې لسیزې راهیسې، په تیره بیا د وروستۍ جګړې له پیل، نه د افغانستان د قومي جوړښت دواقعیت د بدلولو هڅې کړې او دافغانستان لپاره یې دیوه غیر افغاني اداري- سیاسي نظام په توګه د فدرالیزم مانۍ د همدې ډول بدلو احصائیو او فیصدیو په بنسټ درولې ده. خو په افغانستان کې د فدرالیزم برخلیك دافغانستان دقومي جوړښت له واقعیت سره نه شلیدونکې اړیکې لري. نو، په افغان قومي جوړښت باندې پوهیدل په افغانستان کې د فدرالیزم د جوړیدو په امکاناتو پوهیدل دي.

مونږ په دې لنډ وخت او څیړنه کې د افغان فدرالیزم د جوړیدو امکانات د افغانستان د قومي جوړښت په هنداره کې څیړلي دي. داچې زموږ په نظر په افغانستان کې فدرالیزم دشته سیمه ییز قومي جوړښت له مخې یوازې په افغانستان پورې تړلی نشي پاتې کیدای او کیږي چې د سیمه ییزې سیاسي جغرافیې د بریدونو د بدلون تیره کیږدي؛ نو د شمار له مخې مو په لنډ ډول سیمه ییز قومي- ژبني ګروپونه هم څیړلي دي.

خو، له نورونه د افغانستان او پاکستان په قومي- ژبنیو ګروپونو کې ځکه ډیر ایسار شوي یوچې د سیمې غټ قومي- ژبنی ګروپ، پښتانه، چې لایې هم د دواړو هیوادونو ترمنځ سیاسي پولې ماتې ساتلي او په ځانګړو دوه - درې سیاسي جغرافیو کې سره ویشلي دي؛ نه یوازې په افغان فدرالیزم او یا نه فدرالیزم کې؛ بلکې ددې دواړو هیوادونو په ټولنیز- سیاسي جوړښت اونه جوړښت کې هم په خپل وار لوی لاس لري؛ په همدې دواړو هیوادونو کې آباد دي.

دا چې مونږ د ولسوالیو(ضلعو) په کچ د پاکستان د ۱۹۹۷ کال د وروستۍ سر شمیرنې بشپړ نتایج او دقومونو فیصدۍ په لاس کې نه لرو؛ نو دقومي- ژبنیو ګروپونو فیصدۍ مو ددې هېواد د ۱۹۸۱ کال او دصوبو په کچ نفوس مو د۱۹۹۷کال د رسمي سر شمیرنې نه آخستی دی. په همدې ډول مو، د ولسوالیواوسنی نفوس د ۱۹۸۱ کال د فیصدیو له مخې د صوبو د۱۹۹۷کال په نفوس کې اټکل کړی دی.

د یادونې وړ بل ټکی دادی چې، زمونږ دې څېړنې د ځینو قومي – ژبنیو واقعیتونو په بنسټ د پاکستان د قومونو په فیصدیو کې څه نا څه لاس وهلی دی.
د افغانستان د قومونو فیصدۍ مو دافغانستان لپاره د واك فونډیشن د شپږ کلنې سروې او څېړنې (۹۶- ۱۹۹۱) نه اخستې دي.
په دې هیله چې په افغانستان کې به مو د قومونو په بنسټ د ولاړ فدرالیزم د جوړیدو یا نه جوړیدو په اړه، کره حقایق او ربنتینی تصویر، ګرانو لوستونکو ته په مخکې ایښی وي.

په مینه

محمد انعام واك

د ۱۳۷۹ لمریز کال د غویی ۱۹
ولي آباد – پېښور
(مې، ۲۰۰۰)

## لومړۍ برخه:

# د افغاني ټولنې پرون او نن

پښتونولي په افغانستان کې د سیاسي واك د سره راټولولو او دولت جوړونې لومړۍ، پښتون نشنلیزم دویمه او افغان نشنلیزم دریمه تیره ده. درې واړه: پښتونولي دافغانستان دتاریخ ځوزره کلن، پښتون نشنلیزم ځوسوه کلن او افغان نشنلیزم دنولسمې او شلمې پیړۍ سیاسي واقعیتونه دي.

په لومړنیو میلادي پیړیو کې په مرکزي آسیا، غور، او جنوبي آسیا، ملتان، کې د محلي پښتانه حکومتونو تاسیس په پښتنو کې د" ملي احساس" د پیاوړتیا مند ماتکړ. په دولسمه میلادي پیړۍ کې په یوه پراخ کچ د لومړی پښتانه نشنلیزم په توګه د سوریانو سیاسي واکمنۍ په پښتنو کې د" ملي احساس" د پیاوړتیا لومړی تمرین وکړ. خو، په دیارلسمه میلادي پیړۍ کې د مغلو ښکیلاك ددې یون پښې ووهلې.

تر اوّلسمې میلادي پیړۍ پورې بیا هم دپخوا په څیر د وریښمو لارې، شپنه توب نه کرنې ته مخه. د کرنې او اوبو لګولو د سیستمونو ودې اود فیوډالیزم پخیدل، د یوزیات شمیر پښتانه کوچیانو دیشین کیدل، ښاري کیدل او د پښتانه اشرافیت پیاوړتیا، سوداګرۍ، باج او خراج او دمغلي او پارسي امپراطوریو له پوځي تجربو سره د پښتنو اشنا کیدلو، ټولو او ټولو. په پښتنو کې د" ملي احساس" د لاپیاوړتیا او په پای کې د"ملي ټولنې" او " دولت" د جوړیدو د دویم تمرین په توګه د دویم پښتانه نشنلیزم دجوړیدو لار اواره کړه:

په پنځلسمه پیړۍ کې د اعلیحضرت شیخ ملي، په شپاړسمه پیړۍ کې د اعلیحضرت بایزید روښان او په اولسمه پیړۍ کې د اعلیحضرت خوشالخان د ملي مبارزو په نتیجه کې د " ملي احساس" لاپیاوړتیا په اتلسمه پیړۍ کې د اعلیحضرت میرویس نیکه او ستر احمدشاه بابا په لاس د یوه پیاوړي مرکزي دولت او ملي ټولنې د جوړیدو لار لنډه کړه.

خو. داخل انګریزي استعمار دالاز ونیوه. په ۱۸۹۳ کال کې له افغانستان څخه د څه ناڅه دوه نیم لکه مربع کیلومتره پراخوالي او نیمایي نفوس دبیلیدو په نتیجه کې دافغان قومي تجانس کمزورۍ د " ملي ټولنې" د جوړیدو لار ډپ کړه.

خو، لدې سره سره د نولسمې پیړۍ دوه وروستۍ لسیزې په افغانستان کې د دولتي حاکمیت دلاپینګیدو او ملي ټولنې د جوړیدو ښه تمرین و: په افغاني بټۍ کې د بېلو بېلو قومي ګروپونو د څه ناڅه ویلي کیدو په نتیجه کې پښتون نشنلیزم د افغان نشنلیزم خپل دریم، خو خام، بشپړتیایي پړاو ته ننوت.

د کور د خپرونو څانګه، خپرنی لړۍ-۱۹

افغانستان :

# فدرالیزم؟




محمد انعام واك



پېژندنه:


| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | : | "افغانستان: فدراليزم؟" |
| ليکوال | : | محمد انعام واک |
| خپرندوی | : | د "کور" د خپرونو څانګه |
| مهتمم | : | ډاکټر محمد فريد بزګر |
| کمپوزر | : | نعمت الله رسولي |
| د پښتۍ ډيزاين | : | قدرت الله حيدري |
| شمېر | : | پنځه سوه |
| بيه | : | پنځوس روپۍ |
| نېټه | : | ۱۳۷۹ لمريز |




# سرليکونه

سرليکونه | مخونه

## څلورمه برخه:



## پنځمه برخه:



===============

## نقشې :



## چارټونه :

# مننه

د واك فونډيشن د ټولنيزو څېړنو د ځانګړي ټولو غړو، په تيره بيا، ښاغلي جيلاني ځواك ته، چې د سيمه ييزو قومي ګروپونو په برخه كې يې او ښاغلي محمدآصف اكرام ته، چې ددې ليكنې په څوڅو ځلې لوستلو يې، لدې څېړنې سره لاس وكړ: كورودانې وايم.

د ساپې د پښتو څېړنو او پراختيا له مركز نه، چې ددې ليكنې د څو پروفونو په برابرولو سره يې، ددې څېړنې په چاپ كې، په خپل وار، لاس وكړ، هم مننه كوم.

په پاى كې، د كور (KOR) ټولو كار كوونكو او د كور مشر ښاغلي ډاكټر محمد فريد بزګر ته، چې د دې څېړنې په كمپوز، ټايپ او چاپ كې يې ماته اوږه راكړه؛ په ځانګړي ډول د زړه له كومې كور ودانى وايم.

په مينه

محمد انعام واك

۱۳۷۹ لمريز كال - د غبرګولي درېمه
ولي آباد- پېښور